تر(۷)مخه‌رسېږی ، بیاتر(۱۲) مخه‌دنادرشاه افشار بیان کوی .نور مباحث ئې دادی :

(۱) دچمکنو راتګ لاهورته اودنادر شاه مرګ (۱٤) مخ

(۲) داحمد شاه درانی پرتخت کښېنستل اودافغانستان پاچا کېدل (۱۱٦۰ه) (۱۸مخ)

(۳) دنواب ناصرخان سره جنګ اود هغه ماتول (۲۲ مخ)

(٤) داحمد شاه تګ لاهورته (۲۵ مخ)

(۵) دنواب شاهنواز خان تیاری دده مقابلې ته (۲۹) مخ

(٦) دشاه لمار جنګ لاهورته نژدې (۳۱ مخ)

(۷) دمغلودلښکرو رارسېدل ، دنواب قمرالدین خان سره له جهان آباده (۳٦) مخ

(۸)تینګول دعهد له احمدشاه سره دجنګې مشرانوله خوا (۳۸) مخ

(۹) پر سر هند حمله (٤۱) مخ

(۱۰) دسرهند جګړه (۱۱٦۱ ه = ۱۷٤۸ ع) (٤۳ مخ)

(۱۱) لاهورته دنواب معین الملك راتګ دحاکم‌په‌ډول ، دده دپلارتر وفات وروسته ، چه دسرهند په جنګ کښې‌ومړ(٤۹ مخ)

(۱۲) دنواب معین الملك په واسطه ددهلی‌له پاچاسره اتحاد (۵٤مخ)

(۱۳) داحمدشاه بیرته تګ کابل ته (۵۹) مخ .

(۱٤) دنواب معین الملك سره جګړه (٦۲) مخ

(۱۵) پر دهلی حمله (۱۱۷۰ه = ۱۷۵٦ ع) (۷۵ مخ)

(۱٦) پرجینګرحمله (۷۷ مخ)

(۱۷) له انوپشهرڅخه شهدرې ته تګ (۸٦ مخ)

(۱۸) ترجمنا اوښتل (۹۰) مخ

(۱۹) دنواب نجیب الدوله تیاری دمراټیانوجګړې ته په پنجاب کښې (۹۲ مخ)

(۲۰) وژل دنجیب الدوله دباهو آدم له خوا (۹٦ مخ)

(۲۱) دغلودانو درول پر مراټیانو باندې (۹۷ مخ)

(۲۲) داحمد شاه غلبه پرمراټیانو په پانی پت کښې(۱۰۰ مخ)

(۲۳) خاتمه (۱۲۱ مخ)

دا اشعار په (۱۱۷۲ه = ۱۷٦۰ ع) لیکل شوی دی ، اودغه عین هغه‌وخت دی‌چه دمراټیانو سره جګړې جاری اوتو دې‌وې ، ځکه‌چه د (۱۷٦۱ ع) کال په جنوری دپانی‌پت په جګړه کښې دمراټیانو حوادث تمام شوی دی .

داسی ښکاری چه دغه نسخه د مؤلف په قلم لیکلې شوې ده ، ځکه پر حاشیو اوپیتو سربیره ډیر تصحیحی‌خطونه لری دکتاب دپای‌پیتونه دادی :

شاه نامه می شوه منظوم په کاغذ باندی مرقوم
ايما حافظ طوطی ژبانه ژبه بند کړه له بيانه
په دا ختم کړه گفتار (۱) په تنظيم مکړه اشعار

## (٦) تواريخ حافظ رحمت خانی

ديو سفزو پښتنو يو تاريخ دی، چه تر (O-R - ٤٤٨٨) لمبر لاندی په بريټش موزيم کښی شته، (١٢٥) مخه (١٢ × $\frac{3}{4}$ ٧) انچه دی، هر مخ ئی (١٥) ليکی لری، چه د ليکو طول ئی ($\frac{1}{2}$ ٤) انچه دی دا کتاب درا ورټی په کلکسيون اړه لری او مولف ئی معظم شاه نوميږی دی خپل کتاب په يوه پارسی مقدمه شروع کوی او وايی: چه زما پلار پير محمد فاضل نوميږی چه د پيښور د پير سهباك د کلی مشرو، او د حافظ رحمت خان (متوفی ١١٨٨ ه) له نفر يوځخه شمېرل کېدی، دده بادار حافظ رحمت خان يوه قلمی نسخه (تواريخ افغان) دشاه جهان پور دخان بهادرخان داؤ دزی غوريا خيل په کتب خانه کښی وليد له (٢) چه دځښی اوغوريا خيلو اود يوسفزو وقايع پکښی ليکلی وه او په پښتو او پارسی گډوډ و، دا کتاب داخوندرويزه دنثر په ډول کښلی شوی و، نو پير معظم شاه دحافظ رحمت خان په هدايت، دا کتاب په آسان ډول وکيښ. دا کتاب اوه مقام لری، په (١١٨١ه=١٧٦٧ ع) تمام شوی دی.

(١) مقام (٤مخ) دځښی او غوريا خيل راتگ کابل ته او دميرزا الغ بيگ سره مخالفت.

(٢) مقام (٢٢مخ) ديوسفز ولېږ دل پيښور ته، ددلازاکو سره جگړه، ددوآب او باجوړ فتح کول، او دهشتنگر دښار نيول.

(٣) مقام (٤٩مخ) دسوات راتلل دملك احمد ترمشرتوب لاندی دبابر راتگ ديوسفزو دشخړی لپاره.

(٤) مقام (٨٥مخ) د گگيانيو مشت کېدل په دواب کښی، پيښور ته دبابرشاه راتگ او ددلازاکو ماتول.

(٥) مقام (٩٧مخ) دگگيانيو جگړی له دلازاکو سره.

(٦) مقام (١١٣مخ) دمفتوحو مځکو وېشنه په مشهورو قبيلو کښی دشيخ مالی په هدايت، دشيخ مالی او ملك احمد مرگ، دخان کجو رسيدل ومشرتوب ته، او دغوريا خيلو سره عداوت کول.

(٧) مقام (١٣٤مخ) ديوسفز و اوغوريا خيلو جگړی اود خان کجو تصرف ددوی پرمځکو.

---

(١) د فهرست ١٠ - ١١ مخ.

(٢) تواريخ افغان دحسين خان افغان له خوا په (١٠٣٢ه=١٦٢٢ ع) ليکل شوی، اولکه ايتی چه دانډيا آفس دفارسی کتابو په فهرست کښی ليکی (ص٢٣٣) دا کتاب هلته په (٥٨١) نمره ضبط دی، ريو ئی هم پخپل فهرست (ص٢٣٠) کښی ذکر کوی.

دامهم کتاب معظم شاه دمحمد عظیم‌الله‌خان ابن دلاور الملك عزت الدوله دوندی خان دحکمرانۍ په‌وخت کښلی، اودغه‌نسخه‌چه‌ذکر شوه، په‌پای کښې دلیکونکی نوم‌داسې راغلی دی: «کاتب‌الحروف میرزا محمداسماعیل قندهاری بتاریخ ۲۶ ماه جولائی سنه۱۸٦٤ ع» (۱) .

له‌دې پښتنی‌ځخه مونږته دوه‌پښتو تاریخی کتب په‌لاس راځی یوهغه دحسین خان «تواریخ افغان» چه‌بل‌ځای ئی‌مونږدرك ندی‌موندلی، بل‌پخپله‌دغه‌تواریخ رحمت خانی‌چه معظم شاه کښلی او‌ډیر مهم پښتو اثر دی .

## (۷) ریاض المحبت

یو پښتو گرامر اوفرهنگ‌دی، چه‌د نواب‌محبت‌خان له‌خوا په‌پارسی لیکل شوی اوپه بریټش موزیم کښې په(o.R۰٤٤۹۰)نمبرضبط‌دی. ټول کتاب (۷۲٤)مخه($\frac{1}{2}$ ۱۲×۸)انچه‌دی، په‌هرمخ کښې (۱۷) لیکی دی ، دلیکو اوږد والی ($\frac{1}{2}$ ٤)انچه‌دی. دراو رتې په‌مجموعه اړه‌لری. اوداسې شروع کیږی :

«ستایش بیکران ونیایش فراوان نخل بندی‌را باید، که‌حدایق جهانرا به گلهای بوقلمون ونهال‌های گونا گون آراستگی وپیراستگی بخشید، الخ . . .»

نواب‌محبت‌خان دحافظ رحمت‌خان مشرزوی‌و، چه‌په (۱۲۲۱ه=۱۸۰٦ع) ئې‌دا کتاب دسر چارلیس بارلو په‌خواهښت په‌لکهنو کښې‌و کیښ،دغه‌وخت دی‌دبرطانیا دحکومت‌په‌لاس کښې‌بندی‌و .

دی درې دشعر دیوا نونه هم لری چه‌یو هندوستانی، بل پارسی، او بل پښتو دی، یو بل هندو ستانی مثنوی لری چه«اسرار محبت» نومیږی، چه دسسی اوپانو قصه‌ئی په کښې منظومه کړې‌ده (۲) دمحبت‌خان بل کشر ورور نواب‌اللهیارخان پخپل کتاب عجایب اللغات کښې لیکی، چه‌محبت خان په(۱۲۲۵ه=۱۸۰۸ع)وفات شوی‌دی.

ریاض المحبت پردوه بابه ویشل کیږی ، امری باب له (٦تر۵۹۵) مخه . چه‌دپښتو افعالو تصر یفات دی ، د الفباء په تر تیب . د وهمه برخه (له ۵۹۵ ځخه تر۷۲٤ مخه) پښتو لغات دی ، چه‌په پارسی ئې معانی ورته کښلی دی .

د کتاب په‌پای کښې داتمام تاریخ « نونسخهٔ محبت = ۱۲۲۱ ه » ښو ولی دی :

این‌تحفه نسخهٔ نو تصنیف شد‌چو ازمن — آمدندا ز هرسو صد آ فرین ورحمت
اتما م سا ل انرا هر گه زغیب جستم (۲) — تاریخ گفت‌هاتف : « نونسخهٔ محبت »

(۱)دفهرست ۱۱مخ.(۲) دسپرینگر فهرست‌ص۲۵۱_٦۲۰_ د گارسان‌دی تاسی ادب ج ۲_ ص۳٤۹_دایتهی فهرست نمبر ۲٤۵۲ .

(۳) دفهر ست ۱۲ مخ .

## (۸) عجائب اللغات

دا یوه هند ستانی اوپښتو ډکشنر ی ده ، چه پارسی معانی هم لری ، مؤلف ئې د حافظ رحمت خان زوی اللهیار خان دی ، دا کتاب په ( O.R ـ ۳۹۹) نمبر ضبط ، او (۲۷٤) مخه لری ، تقطیع ئې ( $\frac{۳}{٤}$ ۱۰× $\frac{۱}{۲}$ ٦ ) انچه ده ، هرمخ ئې (۱۷) لیکی لر ی هرلیکه( $\frac{۳}{٤}$ ۳) انچه اوږده ده ، په نستعلیق د (۱۲۳٤ ه = ۱۸۱۹ ع ) کال په رجب کښې کښل شوی دی . دهملټون په کلکیسون اړه لری ، ابتدائې داده :

« الحمد الله . . . بعد ستا یش جناب کبریای جل و علی ودر ود بر خوا جهٔ انبیا علیه من الصلو اة افضلها ، ومناقب خلفاء راشد ین ، وجمیع اصحابه وتا بعین رضو ان الله تعالی علیهم اجمعین ، میگوید بندهٔ گنه گار . . . . . الخ » . .

کتاب یوه مقدمه له (٤) مخه څخه لر ی ، چه د پښتو گرامر ځینې قواعد دی ، پخپله د کتاب لغات پر (۲۸) بابه و یشل شوی دی ، چه له (۱۱) مخه شروع کیږی ، لمړ ی هندو ستانی لغات بیا پښتو ، بیا پارسی اوعربی پکښې لیکلي ، اوپر هر لغت ئې لوړ په سره رنگ ددغو ژبو لغات په ( ع ، ف ، پ ، ه ) ښو ولی دی .

د کتاب په پای کښې د تألیف نېټې (۱۲۲۸ه = ۱۸۱۳ ع ) په هندو ستانی اوپا ر سی د محمد ابر اهیم خا ن فرحت اوپښتو د مؤلف له خوا ، اودوې نوری په پارسی اوعربی دمو لوی گل محمد له خوا په نظم و کښې ویلې شوی دی . د کتاب لیکونکی غلام حسین د ی . . .

ددې کتاب بله قلمی نسخه هم په ( O.R ـ ٤٤۹۱) نمبر شته ، چه صفحات ئې ( ۲۲۳ ) په ( ۱۲ × $\frac{۱}{۲}$ ۷) تقطیع د ی ، اولس لیکی هرمخ لری چه ( $\frac{۳}{٤}$ ٥) انچه او ږدې د ی ، په نستعلیق د( ۱۲۷۱ ه = ۱۸٥٤ ع ) کال دصفری په میاشت دشرف الد ین ملتا نی په خط لیکلې ، اودراورتی له کلکسیونه ده (۱) .

## (۹) یوه پښتو مجموعه

نمبر ( Add ـ ۲٦٥۸۲ ) نوله ( ۱٤٦ )مخه (۱۳ $\frac{۱}{۲}$ × ۸) ده ، پر ا ر و پانی کا غذ له ( ۱۰۸۳ تر ۱۸۰٥ ع ) پوری کښلی شوې ، اودولیم ار سکن په کلکسیون اړه لری .

دامجموعه ځینی متفرق مضامین دی دپښتو په خصوص کښې په دې لاندی ډول :

۱:ـ له ( ۱ ـ ۱۰ )مخه دپښتو گرامر قوا عد دی ، درشیدالبیان ، او عبدالرحمن مثالونه لری ، تر(٦۳ ) عنوانو لاند ی .

---

(۱) دفهرست ۱۲-۱۳ مخ .

۲: ـ له (۱۱ ـ ۱۹) مخه دپښتو دادب نمونې چه په رومن لیکلې دی او درحمان ، او هندی قصو او مخزن اسلام څخه اقتباس دی .

۳: ـ له ( ۲۰ ـ ۲۲) مخه‌د مخزن اسلام او رحمان څخه یوه خلاصه .

٤: ـ له ( ۲۳ ـ ۲٦) مخه پښتو لغات له انګلیسی ترجمې سره .

۵: ـ پښتو الفباء ، او دویل له‌مصدره دپښتو افعالو اشتقاق (۱)

## (۱۰) دارزانی دیوان

ارزانی دمخه مونږ دخیرالبیان دسبك اوپیر روښان په بیانو کښې‌پیژاند ، او داهم را اته معلومه وه ، چه دی یو شاعر دی مګر دمکمل دیوان وجودئې نه و،راته ښکاره .

داد یوان په ( O.R ـ ٤٤٩٦ ) په بریټش موزیم کښې‌ضبط ، او ټول ( ۲۵ ) مخه په ( $13\frac{1}{2} \times 7\frac{1}{2}$ ) انچه تقطیع دی ، چه‌هر مخ (۱۵) لیکی په ( $4\frac{1}{2}$ ) انچه او ږدوالی لری .

په ( ۱۹)عیسوی‌پیړی کښې کښل‌شوی، اودراورتی‌په کتابوادو اړه لری . لمړی پښتو نه‌ئې‌دادی :

| | |
|---|---|
| له الفه ګوز تر یا | فقیر را وده بی ریا |
| اول د فتر به و کښیم | په نامه د کبر یا |
| دبل‌چاصفت‌په سو کړم | لکه نقش د بوریا |
| حق‌له‌شش‌جهته‌پاك‌دی | بی پایا نه لوی دریا |

دا کتاب ټولی (٤۹) قصیدې لری، چه د الفباء پر ترتیب برابری دی ، میجرراورټی پردغه کتاب یویاد داشت داسی کښلی‌دی : « داملاد بایزید دانصاری ادبی ملګری و، اخوند درویزه دده‌له بابته هسی وایی :ارزانی شاعرله هنو درو ورونوڅخه‌دی،چه‌په‌قوم پښتانه‌خو یشکی وه ، او ارزانی ، عمر ، علی نومیدل،له هنده راغلل ،او دبایزید انصاری ملګری‌شول، ارزانی خوراقوی شاعر و، بدیه ګوی‌و،ټول دبایزیدعقایدئې په‌پښتونظم کړل، اودبایزیدپه کتاب کښې‌ئې هم اشعار ګډ دی » (۲)

## (۱۱) دهجری دیوان

اشرف‌خان هجری دخو شحال‌خان زوی دمخه هم‌مونږ ته‌دپښتانه شاعر په‌حیث معلوم‌و، خو د دیوان درك مونه درلود، داپښتو ګرانبهااثرتر (O.R ۲۸۰۰) نمبرلاندی په بریټش موزیم کښې‌شته(۱۱۹) مخه لری، تقطیع ئې ( $11 \times 7\frac{1}{2}$ ) انچه ده، هرمخ (۱۵) لیکی‌دی، چه دلیکو اوږدوالی(۵) انچه‌دی. دا کتاب‌دیادری هیوز په مجموعه اړه‌لری. ابتداءئې په‌دې‌پښتو شوې‌ده:

(۱) دفهرست ۱۳مخ . (۲) دفهرست ۱٤ مخ .

دبوسی وعده همیش یار په فردا کا — څما زړه کله با ور په د او ینا کا
چه‌هوس کا، نن د گانده په کار و نه — عا قلان په‌هغه کس پو ری خندا کا
یار. آ گه نه د ی د د هر له نیر نگه — لار ښتیا په زړه کښې نلری دغا کا

اشرف خان د خوشحال خان مشر زوی او په (۱۰٤٤ﻫ = ۱٦۳٤ ع )زو کړی و ۰ په(۱٦۸۱ ع ) دختکوخان‌شو، مگر دخپل‌ورور بهرام‌خان‌په دروه داور نگزیب په‌لاس کښېو وت . اودبیجاپور په کلا کښې بند ی شو ، اوهلته په (۱۱۰۵ﻫ = ۱٦۹۳ ع) کال‌په (٦۰) کلو عمرومړ،ا کښتر اشعار ئې په خپل محبس کښې کښلی دی .

هیوز پردغه کتاب باندی یادداشت کښلی دی« چه‌دغه نسخه دده په‌امر دافضل خان جمال گری له‌اصلی نسخې څخه را نقل شوی ، اودغه سړی داشرف خان له لمسوڅخه د ی ،چه‌دپیښور په علاقو کښې‌اوسی.»

غزلیات ئې دالفباء پر ردیف برابر دی وروسته یوڅو مخمسه لری ، بیا نو رباعیا ت ، اود خوشحال‌خان دمر گ نیټې په‌پښتو کښې راوړی ،چه له‌دغو څخه څلور پارسی‌او نور پښتو دی . د کتاب پای داسی ختم کیږی :

« تمت تمام شه ، په تاریخ د شپیږم دماه جنو ری سنه ۱۸۷۳ عیسوی ، په د ستخط دفقیر غلام جیلانی پښاوری عفی عنه » (۱)

## (۱۲) عبدالقادر خان

دعبدالقادر خان دیوان له دووقلمی نسخو څخه په (۱۳۱۷ش) ماله‌قندهاره خپور کړ په‌دغه فهرست کښې چه‌دغه دیوان ضبط‌شوی‌دی،په (۱۸۸٤ ع) دهیوز په امر دافضل‌خان ختك‌له نسخې څخه په پیښور کښې‌نقل‌شوی‌دی‌څکه چه‌دعبد القادرخان‌دیوان‌چاپ‌شوی‌دی، نودلته فقط هغه‌سوانح را اخلم ، چه دمخه نه‌وه راته معلوم ،او دفهرست مؤلف لیکلی دی :

« عبدالقادر خان‌دخوشحال خان‌زوی،داشرف خان کشر وروړ په (۱۰٦۳ﻫ=۱٦۵۳ ع ) زیږیدلی دی ، چه‌اشرف خان دمغولوپه‌لاس په(۱٦۸۳ ع) بندی شو ،نودی.دختکو خان‌و، مگر دده وراره افضل خان له‌قبایلو سره پخپله خانی کښې مفاهمه و کړه اوعبدالقادرخان اونوردختکو د کورنی خلق دده په‌اشاره تردنیا تېرشول!

عبدالقادر خان د سعدی گلستان او بوستان په‌پښتو ترجمه کړی دی ،راورتی وایی‌چه‌دده تاألیفات تر (٦۰) پوری رسیږی ! » (۲)

(۱) دفهرست(۱۷)مخ .

(۲) دفهرست ۱۷مخ.

## (۱۳) د متفرقو شاعرانو ویناوې

دعبدالقادرخان ددیوان یوه بله نسخه هم په (O.R-۴۲۳۲) او (۱۰ ½ × ½ ۶) انچه تقطیع شته ، چه دډیر مستېتر له کلکسیونه ده ، او په (۱۸) پېړۍ کښې لیکلې شوې ده د انسخه (۷۷) مخه ده چه په (۱۰) مخو کښې دځینو نومور کیو شاعرانو د کلام انتخاب دی اوددغو شاعرانو اشعار پکښې ضبط دی ، چه دپښتو دادب په تاریخ کښې نوی نمونې بللی کیږی :

۱ ـ ۶۲ مخ : دفیض محمد نومی شاعر یوه غزل
۲ ـ « « : داشرف » » » »
۳ ـ « « : دفقیر افضل » » » »
٤ ـ « « : دصدر خوشحال » » یو مخمس
٥ ـ ۶۳ « : دخوشحال خان » »
۶ ـ ۶٥ « : دصدر خوشحال » »
۷ ـ ۶۸ « : دنواب علی محمد خان یوه غزل
۸ ـ ۶۹ « : دمسکین » »
۹ ـ ۷۰ « : دنواب علی محمد خان پر مرگ مرثیه د محمد کاظم خان ختك له خوا (۱۱۶۲هـ = ۱۷٤۹ ع)
۱۰ـ۷۲ « : دسید عبدالصمد پیرزاده یو مخمس .
۱۱ـ۷٥ « : دحافظ رحمت خان « » (۱) .

له دغو شاعرانو څخه ډیر داسی دی ، چه مونږ ته ئې دمخه نوم او آثار نه وه ښکاره ، فقط ددغه اثر له بر کته ددوی نومونه او آثار راته څرګند شول .

## (۱٤) د حمید د وفات تاریخ

عبدالحمید ماشوخیل ډیر مشهور شاعر دی ، او په پښتانه شعراء لمړی جلد کښې ئې ذکرهم راغلی دی په دې فهرست کښې دده دحیات په خصوص کښې فقط یو نوی شی ، چه هغه دده دوفات نیټه ده په (ص ۲۰) کښې دفهرست مؤلف در اورتې دیو کتاب « انتخاب اشعار افغانی » (ص ۸٥) په حواله لیکی ، چه حمید په (۱۱٤٥ هـ = ۱۷۳۲ ع) وفات شوی دی .

## (۱٥) دنجیب دیوان

په دغه نامه تر اوسه مونږ ته کوم پښتون شاعر نه و معلوم ، او نه مو په پښتانه شعرا کښې ذکر

(۱) د فهرست ۱۸ مخ

کړی دی ، مګرخو شبختنا نه ددې فهرست په مرسته اوس معلومه شوه ، چه دخو شحال خان او رحمان‌بابا ددوري یو پښتون شاعرنجیب دی :

دده دیوان دراورتی په کتابو کښې و،اوتر(O.R- ٤٤٩٥) امبرلا ندی دبریطانیاپه موز یم کښې ضبط ، او (١٨٨) مخه دی ، چه تقطیع ئی (٨ × ٥$\frac{1}{4}$) انچه اوهرمخ (١٣) لیکی دی چه د لیکوطول ئی هم(٣$\frac{1}{2}$انچه) کیږی د کتاب ابتدا ده :

| | |
|---|---|
| جفا کار ه بی و فا د ه دا د نیا | بی‌وفاهم بی بقا د ه دا دنیا |
| په‌ساعت کښې‌مخ‌خر ګند کاندي‌بیانه وی | ته‌به وائی چه بر پښنـاده دادنیا |
| ډیر عالم دی په ارما ن ور ځنی تللی | نه به شی نه دهیچا ده دا دنیا |

دفهرست مؤلف لیکی : چه دنجیب‌له‌احوا له‌هیڅ نه معلومیږی ، فقط دراورتی له یوه یاد داشته دونی خر ګند یږی ، چه‌دی یو سفزی پښتون و، کتاب غزلی اری، خو له (١٧٤ تر١٨٨) پوری رباعیات دی ، د کتاب‌په پای کښی هسی کښلی دی :

« تمت تمام شد ، دیوان نجیب : بحسب ارشادقبلهٔ کونین مربی دارین ۰۰۰ حضرت صاحبزا ده محمدی جیوسلمه الله‌تعالی از دست فقیرپرتقصیر ګـل محمدپشاوری سلخ ما ه صفرسنه ١١٠٨ » ( ١ )

بخپله دنجیب د دیوا ن وجود ، مونږ ته نو ی ا دبی تحفه ده ، چه معلو مـات ئی لاسته ر اغله اما د کتـاب آ خرنی‌ لیکی هم ډیری غنیمت دی ، ځکه دا ښکاره کو ی ، چه دمحمد ی په ا مر کښلی شوی دی .

هغه وخت چه پښتا نه شعرا ء امری تو ک لیکل کیږد ی په (٢٧١) مخ کښې‌دمحمدی ذ کر راغلی دی ، دا سړی ډیر باذوقه شاعر اودروحانی مقام خا وند و ، دیونس یوقلمی دیو ان چه داعلیحضرت همایونی په کتا بخـانه کښې دی ، او په (١١٧٦ هـ ) لیکل شوی دی ، دمحمد ی په خط ځینی حو اشی اری . د غه دنجیب دیوان هم ددغه باذوقه صاحبزاده په امر په (١١٠٨هـ) کښلی شوی دی ، چه مونږته دمحمد ی د حیـا ت دوره را ښیی ، دده د حیـا ت ا و شعر په خصوص کښې‌پښتـا نه شعرا ء ( ج ا ـ ص ٢٧١ ) ته رجوع وکړی ۰ ۰

## (١٦) حافظ عبد الـکبیر

دده کتاب معجزات نومیږی ، دډار مستهرله کتا بو څخه دی، چه په ( O.R-٤٢٣٧) نمبر مو جو د او (١٣١) مخه دی ، تقطیع ئی ( ٨$\frac{3}{4}$× ٦ ) انچه ده ، ١٥ تر ١٨ لیکی‌لر ی ، هره لیکه ( ٤$\frac{1}{2}$)انچه‌ده ۰ د کتاب ابتدا ء :

---

( ١ ) دفهرست ٢٠ مخ ۰

هغه علم چه د خدای دی — ترعا جز د خلقو رای دی
نه خبر پری جبرائیل دی — نه خبر پری میکائیل دی
نه خبر پر سفره دی — نه خبر پر بره دی

دا سی ښکاری ، چه عبدالکبیر دا کتاب داحمد شاه بابا په عصر کښې کښلی دی ( ۱۱۶۶ه =۱۷۵۳ع ) دیدوه پارسی کتب هم لری چه یو درالمجالس او بل دفع الفقر نومیږی اونور کوچنی کوچنی اشعارهم لهده څخه پاته دی (۱)

د کتاب دپای بیتو نه دادی :

چه و تاو ته ئې و ایم — زه ئې و کښموئې نمایم
وعاقل ته اشارت دی — کبیر کړی نصیحت دی

ددې کتاب له(۱۱۷مخه تر ۱۲۷)پوری لنډ اشعاردی، چه یو مناجات ئې په (۱۸۸۷ع) پهدهلی کښې دفوایدا لشریعه پرحاشیه همچاپ شوی دی (ص۱۰۸ — ۱۳۰) له (۱۲۸تر۱۳۰) پوری دمطیع الله مناجات دی، چه هغه همدرشیدالبیان د(۳۰ ـ ۴۱)مخ پهحاشیه په(۱۸۷۴ع)په پېښور کښې چاپ شوی دی.

## (۱۷) دشیدادیوان

دشید ادیوان زما څخه هم شته ، مگر دانسخه ما پخپله په(۱۳۱۵ش) لههغی نسخې څخه نقل کړه، چه زما استاد محترم مو لوی ابو الوفاء افغانی په (۱۳۴۰ق)لهیوې بلیقلمی نسخې څخه نقل کړې وه، هغه قلمی نسخه دقند هارد کوتوال سردارعبدالمجید خان پهتصرف کښې وه او په(۱۳۲۵ق)په پېښور کښې دعبد المستعان اکبر پوری پهخط کښلې شوې وه.

اما افسوس چهدادرې سره نسخې ډېرنواقص اوغلطۍ لری، اوجداً مقابله اوتصحیح غواړی.

په برېټش موزیم کښې ددې دیوان قلمی نسخې ډېری دی، لمړی نسخه چهدراورتی له کتابو څخه ده په ( O.R-٤٤٩٤) نمبر ضبط ، او ( ۱۴۷ ) مخه لری ، تقطیع ئې ( $\frac{1}{2}$ ۱۲×$\frac{1}{2}$ ۵ )انچه ده، هر مخ (۱۱) لیکې لری، هرهلیکه پنځهانچه اوزده ده.

دا نسخه یوه مقدمه، اوبیانو حمد، نعت،مناقب، اودشیخ نقشبند (رح) اوشیخ احمد سرهندی ( رح)اوغلام معصوم(رح) مدح لری،وروسته نوله(۳۰)مخهاصلیغزلیات شروع کیږی، نسخه ئې ابز غلطۍ لری، راورتی لهلاهوره موندلې ده، اوداهغه نسخهده، چهپخپله شیدامیان محمدی ابن میان عبدالله سرهندی تهرالیږلې وه، اوددې کورنۍ سره شیدا روحانی ارادت درلود، د کتاب دلمړی برخې په پای کښې تاریخ (۱۱۸۱ه=۱۷۶۷ع)لیکلی دی، بله نسخه تر(ADD-۲۱۴۷۱)نمبر لاندی شته، چه (۱۵۸)مخهده، تقطیع ئې(۱۰×$\frac{1}{2}$۶)انچهدی،هرمخ (۱۱) لیکی لری، هره لیکه څلور نیم انچه اوږده ده.

---

( ۱) صفحهٔ ۲۱ فهرست .

دانسخه د(ليوين باورنګ) له کتابو څخه وه ، ډيرى دديوان برخى نلرى، د فيض على په خط ده . دديمې نسخې بيان به وروسته راشى . مستر راورتى هسى ليکى:

چه شيدا کاظم خان دمحمد افضل خان ختك زوى، او په (١١٤٠) هـ = ١٧٢٧ع) زو کړ ى و، دپلار ترمرګك وروسته دده مشر وروراسدالله خان د قوم مشرشو ، او کاظم خان دوروردبدو روابطو له لامله کور پرېښو ، او ډير کلو نه په کشمير کښې و، اوهلته ئې ډير علوم تحصيل کړل، بيانو خورا ډير عمرپه سرهند کښې اوسېدى،اوپه رامپور کښې هم ميشت و،او دخپل عمر ډيره برخه ئې هلته تېره کړه (١) .

# (١٨) دکامګار خان ديوان

کامګار خان د مخه فقط دغونى مونږ پېژاند ، چه يو پښتون شاعر دى ، دپښتانه شعر اپه لمړى جلد کښې موديادرى هيوز دکليد افغانى په حواله دده ذکر کړى دى، مګر لەدې فهرسته ددې شاعر په خصوص کښې ښه معلومات لاس ته راځى .

په برېټش موزيم کښې تر(O.R-٢٨٠١)نمبرلاندى ، دشيداددېوان دريمه نسخه شته ، چه (٢٠٠) مخه په ($10\frac{3}{4} \times 7$) انچه تقطيع ده ، د مخود ليکو شمير ئې (١٥) دى ، اودهرى ليکى طول (٥) انچه دى ، دا نسخه مسترهيوز ته په (١٨٧٢ع) دغلام جيلانى پېښورى په خط لەيوى اصلى نسخې څخه ليکلې شوې ده .

دانسخه دکامګار خان ديوان هم له ځانه سره يوځاى لرى ، چه ابتداء ئې داده :

| | |
|---|---|
| په ثنا به د هغه کړم ابتداء | چه ئې نشته ابتدا او انتها |
| د مولا ثنا صفت ورځنى اورى | و هر څيز ته چه نظرو کاد انا |
| لەيومڅاڅکى زيبا صورت پيدا کا | پخپل حمد او په ثنائې کاګويا |
| لەاوريځى قطره واچوى درياب ته | ترى پيدا کا قيمتى لولو لا لا |

مستر هيوز دغه لاندى ياد داشت د(١٨٨٤ع) دنومبر په ٢١ تاريخ پردې کتاب ليکلى دى:

« خانزاده کامګار خان د ختکو دمشهور مشر يو زوى اودپښتو ښه شاعردى ، چه په (١٦٥٣ع) زو کړى دى، دانسخه لەهغه ديوانه کښل شوې ده ، چه دپېښور په جمالګرى کښې دافضل خان ختك په تصرف کښې وه » ددغه شاعر وجود دهيوز ترتد قيق دمخه چاته نەو معلوم، خوده ئې نسخه له افضل خان څخه ومونده. دانسخه په (٥) داګست سنه (١٨٧٢ع ) دغلام جيلانى پېښورى په خط ليکلى شوې ده (٢) .

---

(١) داشرحه دفهرست مؤلف لەانتخاب شعرپښتو (ص٣٠٦) څخه اخيستې ده ،چه دراورتى اثردى.

(٢) دفهرست (٢٣) مخ .

## «۱۹» د قاسم علی خان افریدی دیوان

دقاسم علی خان ددیوان یوه مهمه نسخه مادمخه هم لیدلې وه، اوهغه وخت چه دپښتانه شعراء لمړی ټوك لیکل کېدی، هغه نسخه زما څخه وه دا نسخه مرحوم موسی خان د شر کت پښتو ن رئیس مو ندلې وه په بریټش موزیم کښې هم دوې نسخې شته، لمړی په (O.R-۳۹٤) نمبر(۱٤٦)مخه ده ،پای ئې داسې دی :«دیوان افریدی ... من تصنیف قاسم علی خان افریدی بروز پنجشنبه بیستم شهر ربیع الاول هجری سنه (۱۲۰۹) جلوس شاه عالم پروند پادشاه سنه ۳٦ » .

دانسخه دهملټون په کلکسیون اړه لری، په ابتداء کښې شجرهٔ قادریه په پښتو منظومه شوې ده له (٦) مخه ئې غزلیات شروع کېږی .

قاسم علی خان افریدی نقشبندی په فرخ آباد کښې میشته و، سید کلام الدین د ده ملازم اوملګری ددوهمې نسخې لیکوال هسې وایی ، چه قاسم علی خان په پارسی ، هندوستانی ،اولنز انګلیسی، اوپه کشمیری اوتور کی پوهیدیء ، پخپله دی په (ص۱۳۳) کښې دلمړی نسخې لیکی، چه زما اشعار دحافظ غلام محمد په مرسته په (۱۲۰٦ه) سره را ټول شول .

داسې معلو میږی چه دغه لمړی نسخه د پخپله قا سم علی خان په خط لیکلې شوې وی . ځکه ډیر ځایونه اصلاحات لری اوځینې موار دئې په بل خط سم شوی دی ، او داسې پرلیکل شوی دی : (اول مسودهٔ کتاب دیوان افریدی ) .

اما دو همه نسخه چه پـه ( O.R-۳۹٥) نمبر پـه ( ۱٤۹ ) مخه کښې ضبط ده ، د هملټون په کتابو اړه لری ، په پای کښې داسې لیکلی دی : «تمت تمام شد دیوان افریدی ، بتار یخ سلخ شعبان المعظم سنه۱۲۳۱هجری بخط خام احقر العباد سید کلام الدین قادری پیر عاشق که لقب ازقاسم علی خان افریدی یافت وتصنیف دیوان مسمی دیوان افریدی نیز بخان موصوف بود ومهارت درچندزبان میداشت ، وبلکه چنددیوان بزبان فارسی وهندی وچند ملفوظات انګریزی و کشمیری ونیز ترکی تصنیف می‌نمو د ، وعلامهٔ عصر واهل دول‌بود ، وا ین حقیر نیز از سلسلهٔ ملاز مان اوملازم بود ، اتمام یافت » (۱)

## (۲۰) دا کبر د یوان

تراوسه مونږ ته داشاعر او دیوان نه‌و معلوم ، دبرطانیا په‌موز یم کښې په ( O.R-٤۲۳۰ ) دغه‌نسخه ضبط ده ، تقطیع ئې($8\frac{1}{4} \times 5\frac{1}{2}$) انچه‌ده او (۱۰۱) مخه‌ده ، داتلسمې عیسوی پیړی په پای کښې لیکلې شوې ، اودوارمستېر په کلکسیون اړه لری .

---

(۱) دفهر ست (۲٤) مخ .

ابتداء ئې داده :

چه‌و پرد پس ته‌دعدم له ښکو یه کور راغلې
په خوښه راغلې ، که حضور د چاپه زور راغلې
په‌ار ادت کښې ئې خو استلې وې په مینه شه‌وه
لکه آ فتاب چه‌له پرد ې دسپینو تور ر اغلې
په‌عا قبت د مینی نه یو هیډ ې زده دی نه‌و
لکه پتنګ هسی .پر سرو لنبو داور را غلې (۱)

دشاعر وخت اوسوانح هیڅ ندی معلوم ، دیوان‌غیرمرتب لیکل‌شوی دی ، ا ودغه برخی لری : له ( ۱ تر ۵۳ ) مخه دامام قصه . له ( ۵۳ تر ۵۹ ) مخه دوه شعره دخدای تعالی په ثناء کښې . له (۶۰ تر ۶۶) مخه دخد ای تعالی اسماء الحسنی له ( ۶۶ تر ۷۳ ) مخه ربا عیات . له(۷۳ تر۹۳) مخه غزلیات، له (۹۳ تر ۱۰۱) مخه دینی اشعار (۲)

## « ۲۱ » دعبدالقا درخان قصیدهٔ برده

په ( ۴۲۳۳ - O.r) نمبر دبر طانیا په موزیم کښې‌د ا کتاب موجوددی، ( ۵۰ ) مخه لری ($\frac{1}{4}$ × $\frac{1}{2}$ ۵ انچه) تقطیع لری، هرمخ ئې‌له (۱۳ تر ۲۴) لیکی دی ، دپار مستیتر له کلکسیونه ګټل کیبزی، دمخه ددغه کتاب وجودمونږ ته نوو معلو م ، په قند هار کښی چه مایه ( ۱۳۱۷ ش ) دعبد القاددرخان دیوان چاپاوه ، دده په تألیفاتو کښې دغه کتاب ند ی ذ کرشوی .

د ا قصید ه د محمد ابن سعید البو صیر ی له عر بی قصید ی څخه په هغه عر بی قا فیه نظماً تر جمه شوی‌ده ، لمړی‌بیتونه ئی دادی :

درپو هیبزم زړه‌در یاد کړ ، بیل یا ران دذی سلم
چه هردم دی له دووستر ګو اوښی ځی ورسره د م
لاد یار د کوی دخا وری بوی نسیم درلره را و ړ
یا . . . دیا رد لو ر ی بر یښنا و شوه په تو ر تم

دا نسخه تاریخ نلری ، اودقصید ی په پای کښې نا ظم خپل نوم‌هم‌ذ کر کو ی (۳)

## « ۲۲ » دبابو جان آ ثار

با بوجان مایه پښتانه شعراء ( ج ۱) کښې ذ کر کړ ی دی ، مګردلته ئی ځینی آثارنور هم ښو د ل شوی دی، دبریطانیا په موزیم تر(۳۹۷ - O.r)نمبر لاندی‌دده‌یو کتاب شته، چه(۹۲) مخه دی

(۱) دغه اشعار غلط چاپ شوی‌وه، مااصلاح کړل . (۲)دفهرست۲۵مخ.(۳)دفهرست۲۵ مخ .

او دهملټون په کلکسیون او هلری ، دده یو بل اثر دعای سریانی ده، چه دډورن په (Chrestomathy) ص ( ۳۷٤ ـ ۳۸٦ ) کښې راغلی ده .

د بابوجان یواثر (قصهٔ بابوجان) په انډیا آفس لایبریری کښې هم شته ، دا لا بیتو نه دده د کتاب په پای کښې شته :

ظا لمان به د آ تش په گر زو هل شی — هم خیری به ئې په غا ړه وی له نا ره
د ا میدځا ی پا تو کم شو با بو جا نه — خلقو لاس په بدی و نیو ه یکباره (۱)

## «۲۳» دمعزالله خان دیوان

دمخه فقط دمسترهیوز له کلید افغانی څخه ددې شاعر یو شعر مو نبرته معلوم ودده دیوان د بریطانیا په موزیم کښې په (o.r - ۲۸۲۷) نمبر ضبط دی ، چه د هیو ز لپا ره په (٥) د فر ور ی ( ۱۸۷۲ ع ) غلام جیلا نی پېښو ری کښلی دی .

هیوز پردغه دیوان یو یادداشت کښلی دی ، چه معزالله خان په یوه کلی کښې اوسیدی چه کو ته Kotah نومیږی ،اوله پېښور ه دوه میله لیری دی

دیوان تول (۸۰)مخه ($\frac{۳}{٤}$ ۱۰ × ۷ ) انچه په تقطیع دی ، دابتداء بیتو نه ئې دادی :

چه صانع دهرمصنوع دی رب ځما — چه وجودئې له عد مه کړ پید ا
له قطری نه هسی ښکلی بشر جوړ کا — چه ادا ئې دتعریف نه شی له چا
یو سړی چه په صورت د بل یو نه دی (۲) — له جمیع حکمتو نو د ی یو د ا

## «۲٤» د ابوالقاسم دیوان

په نمبر ( ۲۸۲٦ ـ o.r ) دابو ا لقا سم دیوا ن ضبط ، او تول ( ۷۹ ) مخه په (۱۱ × $\frac{۱}{۲}$۷انچه) تقطیع دی، هر مخ ( ۱٥ ) لیکی لری ، چه نسخهٔ د مستر هیو ز لپا ره په ( ۱۸۸۲ ع ) د محمد حسن په خط په پېښور کښې لیکلی شوی ده .

دشاعرنور هیڅ احوالنه ښکاری ، فقط هیوز دغونی وایی ، چه دی د پېښور اوسید ونکی و خودژوندانه وخت ئې ندی را ته معلوم . د کتاب ابتد اء :

بیا گل گشت ته شه روا ن نگا ر ځما — نه کا هیڅ فکر تد بیر د کا ر ځما
ر قیب ځکه ځما ا و ښی پا کیز ه کړې — خوښ ئې نه دی هیڅ آبروی وقار ځما
رازچه ورسی تردوه کسه رسواشی (۳) — دوه لیمه کړ ه ر ا ښکاره اسرار ځما

(۱) دفهرست ۲٥ مخ (۲) د فهرست ۲٦ مخ (۳) د فهرست ۲٦ مخ .

## «۲۵» گـلدسته

دا کتاب دعبد القا در خان په ترجمو کښې مونږ ته معلوم و مگر یو ره نسخه ئې نه وه را ته معلو مه دبریطانیا په موزیم کښې په (o.r - ٤٥٠٤) نمبر دا کتـا ب شته ، (۱۲۹) مخه اری تقطیع ئې ($9\frac{1}{4}\times5\frac{1}{4}$) انچه دی ، هر مخ (١٤) لیکی په ($3\frac{1}{2}$ انچه) اوږ دوالی اری دا کـتـا ب دسعدی د گـلستان ترجمه ده ، ابتدائی داسی ده :

«منت دی خدای لره چه غالب اولوی دی، او عبادت ئې سبب د نزدیکت دی او په شکر دده کښې زیادت والی د نعمت دی، هر نفس چه ښکته ځی، مددور کوونکی د حیات دی، او هر کله چه پورته راځی، فرصت رسوو نکی دذات دی، پس په هر نفس کښې دوه نعمته موجود دی او په هر نعمت شکر واجب دی »

ترترجمې دمخه پخپله عبدالقادر خا ن په (٥) مخه کښې منثو ره او منظو مه مقد مه لیکی او داسی وایی : «چه د تقدیر په امر په (۱۱۲٤ ﻫ = ۱۷۱۲ ع) زه دغم اواندوه په کوړله په نوښهره کښې اوسیدم، او هلته می دزړه دتسلیت او مشغو لیت لپاره دشیخ سعدی د گلستان په ترجمه شروع و کړه ، نوم می گـلدسته پر کښېښو» .

لکه د کتاب په پای کښې چه دا تمام نږته په شعر کښې لیکلی شوی ده ، هم په هغه (۱۱۲٤ﻫ) کال د گلستان ترجمه ختم شوې ده ، نو گویا دا کتاب داشر ف خان ترمرگ (۱٦٩۳ ع) وروسته ترجمه شوی دی ، چه افضل خان دختکو مشرو .

په دغه وخت کښې عبدالقادرخان (٦٠) کلن، او دخپل وراره په حکم نفی شوی، او په نوښهره کښې اوسیدی، کتاب دسعدی د گلستان اته بابه لری، او پوره ندی طبع شوی، دنسخې په پای کښې هسی لیکلی دی:

«ئناده خدای لره چه دا کتا ب گلستان تصنیف تالیف دعبدالقادرخان زوی دخوشحال خان ختك په سعی دقلم خام رقم ددې بنده سراپا سقیم سید عظیم سره په سن دولس سوه یواویا (۱۲۷۱ ﻫ) کښې چه شمار شهر او س پینځ و یشتم در مضان المبارك ده ، اتمام او اختتام ئې بیاموند » .

دې نسخې په مستر راورتی اړه درلوده ، خو یوه بله نسخه په (o.r-۲۸۲۸) نمبر هم شته، چه په (۱۸۷۲ ع) دهیوز لپاره دغلام جیلانی پېښوری په خط لیکلې شوې ، او ټوله (۱۱۸) مخه ده. (۱)

## «۲٦» دصدر خان آدم خان او درخانی

دا نسخه په (o.r-٤٥٠۲) په (۷۰) مخه په ($8\frac{1}{4}\times6$) انچه تقطیع د بریطانیا په موزیم کښې شته ، او د میجر راورتی په مجموعه اړه لری . ابتدائی داسی ده :

| | |
|---|---|
| ر به زړه ځما چمن کړه | د تا یا د په کښې گلشن کړه |
| استخوان می پنبه زار کړه | پکښې اور دعشق انوار کړه |

(۱) دفهرست ۲۸ مخ .

هغه او ر پـه ما لـنبه کړ ه      خا کستر می دا پـنبـه کړ ه
ځما ز ړ ه لـکه لا له کړ ه      دز ړه و ینی می پیا له کړ ه

صدرخان دخوشحال خان زوی اودعبدالقادر خان وررو ، دغه قصه یه یو سفرو اوسوات کښی ډېره مشهوره ده ، میجرراورتي وایی : چه فخرالدین صاحبزاده هم په نظم لیکلي ده (۱) بله نسخه ئي هم په دهلی کښې په (۱۸۸۳ع) داکبر شاه پېښوری له خوا نشر شوې ده ، اما مشهور ډول دمنثورې قصې ئي په پېښور کښې په (۱۸۷۲ع) دمو لوی احمد ( تنګی ، اشنغر ) له خوا خپور شوی دی ، اودی ئي پهمقدمه کښې وایی : چه داقصه په ر شتیا هم وقوعی ده، اودر خانۍ دسوات دسرحد دکوزی باز درې دکلي دخان لور وه ، اوآدم خان دباز درهٔ بالا دیوه مشر زوی و ، اکثر و قایع ئي په دغو کلو ، اوهم اکوډې ته نژدې دکابل درود پر غاړه د مسری بندا Misribanda په کلی کښې پیش شو ی دی ، اوهم په بل کلی کښې چه تو لنډی Tulandai نو میږی(۲) صدرخان دیوان هم لری، اوددلی قصه ئي هم منظو مه کړیده، اودنظامی دخسروشیرین ترجمه ئي هم له پاړسو څخه په پښتو کړیده، دده یو څوغزلی په پښتو منتخباتو کښې هم رانقل شوی دی (په کلید افغانی کښې دهیوزله خوا) .

مؤلف د کتاب دختم نېټه د(قیبغاد) په حروفو کښې ښیی ، چه (۱۱۱۷ه) دابجد په حساب کېږی ، اووایی ، چه زما عمر دغه وخت (۵۳) و د (جیم) په ابجدی قیمت . نوله دغه حسابه دی په (۱۰٦٤ه = ۱٦٥٤ع) زو کړي دی . د کتاب پا ی :

زا غ حاسدزغن جاهل دی      بلبل څوك؟ درد من عاقل دی
س قـیبغـا دبـلبـلـو لا وه      جیـم عـمـر نـن ځمـا و ه
د ا کتاب د عا شقا نو      چه مـانظم کړ یـارانو ( ۳ )

## «۲۷» ددلی او دشهۍ قصه

دا کتاب په (O.R-۲۸۲٥) نمبر، په (٤٤) مخه ($9\frac{1}{2}\times 6$) انچه تقطیع موجود دی ، د هر مخ لیکی ئي (۱٥) دی ، چه طول ئي ($4\frac{1}{2}$) انچه کېږی. په (۱۸۷۱ع) داګست په اتم تاریخ دهیوز لپاره غلام جیلانی پېښوری کښلی دی. مؤلف ئي هغه صدرخان خټك دی ، اوهسی وایی چه شهۍ دحیات خان لوروه ، د کتاب ابتداء داسی ده :

(۱) دراورتي دپښتو ګرامر مقدمه ص ۳۳
(۲) دالفنسټون د کابل حوادث ص ۲٤٤ د (۱۸۳۹ع ) طبع لندن .
(۳) د فهرست ۲۹ مخ .

| | |
|---|---|
| پسله حمد ه له درو د ه تحیا ته | دماضي مینو حال دی غوز کړه ما ته |
| دافصه چه زه ئې وایم بې نظیر ه | اور یدلي ده دا ما له یو ه پیر ه |
| یو کهنه دیرینه سال پیر کلان و | گرزیدلیء په هرلوري په جهان و |
| ډیر عاقل روشن ضمیر و سخن سنج و | ډېر فاضل سخن امیر ومعدن گنج و |

د کتاب پای :

| | |
|---|---|
| ښه رنګ تم شوه سن ئې دادي اشکاله (۱) | د شپې د لي قصه تما مه لا له |
| ښه چه تم شه د شپې د لي کتا ب ( ۲ ) | ځمازه‌ډېسې لړزان وډېر خراب |

## «۲۸» علم خانهٔ دانش

دا کتاب په (O.P- ٤٥٠٦) نمبرپه (۹۰) مخه (۷×۱۲½) انچه‌تقطیع موجود ، اوده‌رمخ لیکې (۱۹ ) په څلور نیم انچه اوږدوالي دی . دمیجر راورټي له کلکسیو نه د ی ، او په نو نسمه پېړۍ کښې لیکل شوی‌ښکار ی .

دا کتاب محمد افضل‌خان خټك داشرف خان زوی له پارسي عیار دانش څخه ترجمه کړی اوپه مقدمه کښې‌وايي : چه دعمر پر(۵۳) کال‌مې په‌ترجمه شروع کړېده،عیاردانش دابو الفضل منظوم اثردی ، چه دواعظ کا شفي له انوار سهیلي څخه ئې منظوم کړی د ی ، دانسخه دڅلورم باب له منځه شروع کېږي ، له دې کتا ب چه ډېرورن په« کرستو ماتهی» کښې کو مې برخې نقل شوي د ی ، په غلطه ملك خوشحال خان ته منسو بې شوی دی .

د کتاب آغاز :

| | |
|---|---|
| دا آ غاز د ی پنا مه د هغه خدا ی | چه بې ځا یه د ی بې مثله ر هنما ی |
| په تخلقو ا و خلق ته ر همنو ن د ی | فا ستقم کما ا مر ت . . . ( ۳ ) |

ددې کتاب یوه قلمي نسخه ا و مکمله په کابل کښې‌شته ، په پښتانه شعراء(ج ا ص ۳۰ ۲) کښې ماتفصیل لیکلی د ی .

## « ۲۹ » گلستا ن

دا نسخه په ( ٤٥٠٥ - O.P) نمبر په ( ۱۲۹ ) پانې کښې په ( ۱۲ ¾ × ۷ ¾ ) انچه تقطیع ، اوهر مخ (۱۵) لیکیز مو جو ده د ه ، درا ور تي په کتابو اړه لري ، دسعدي گلستان امیرمحمد انصاري تر جمه کړی دی .

(۱) په‌دې بیت (اشکاله) نه معلومېږي‌چه مقصد ئې څه دی ؟ (۲) د فهرست ۳۰ مخ .
(۳)دفهرست ۳۰ مخ.

ددي مؤ لف احو ال هیڅ ندی معلوم راورټی پخپل یوه یاد داشت کښې کښلیدی چه د ا نسخه ډېره غلطه ده ، زه فقط یوه بله نسخه هم لهدی کتابه درک لر م ..

د کتاب آغاز: « همه واړه ثنا وصفت او کل احسان و منت هغه لوی قادر څښتن تعالی لره ، چه طا عت ئی سبب دقر بت دی ، او دده په شکر کښې زیا تی د نعمت هریو ساه چه په ښکته درومی ، اوزده وونی دحیات دی اوهر کله چه پورته راشی خوشحا لوونی د ذات ، یعنی دځان دی . پس په هریوه ساه کښې دوه‌نعمتونه موجوددی اوپه هریوه نعمت ئی شکر وا جب»

د کتا ب پا ی :

متر جم این گلستا ن امیر محمد بن میر محمد ا نصا ری عفی عنهما ، با تما م ر سید در دار الامارۀ کلکته سنه ( ۱ ۲ ۲ ۷ ) هجر ی قد سی ( ۱ )

## « ۳۰ » غلام محمد او فیاض

ددې دواړو ذ کر په‌پښتانه‌شعراء (ج ا) کښې راغلیدی، اوهغه کتب چه ددوی په‌نامه هلته ذ کر شوی دی په بریټش موزیم کښی‌هم شته ، فقط دلته مونږ د کتابو له نیټوڅخه دونی استفاده کولای‌شوچه‌دشاعرانودحیات دوره لنږ څه ټینی تا کله کېږی ، نوئی‌دلته‌راوړو: دغلام‌محمددسیف الملوک‌قصه‌چه‌نمبر ئی (O.P-۳۹۸ ) دی ،په (۱۲۱۵ ﻫ = ۱۸۰۰ ع ) لیکلی شوې ، اودهملټون له مجمو عې څخه ده

بله نسخهٔ ئې دفیاض د بهرام گور له قصې سره یو ځای په ر بیع ا لاول ( ۱۲۷۱ ﻫ ) دسراج الدین قاضي زاده سا کن ملتان په‌خط ده ، چه دراورټی په مجموعه اړه لری(۲)

## « ۳۱ » دمعین‌الدین‌عذر اوامق

دا کتاب تر (O.P-۴۵۰۰) نمبر لا ندی مو جو د ، او ( ۹۳ ) مخه دی ، چه تقطیع ئې ( ۹ × ۶½) انچه کېږی، هرمخ (۱۳) لیکی اوهره‌لیکه(۴¼)انچه اوزده د ه .

اصل کتاب دحاجی محمد حسین شیرازی له پارسې نسخې څخه نظماً په پښتو ترجمه شوی دی، اوداسی ښکاری، چه‌پخپله دمترجم په‌خطدی په(۱۲۵۶ﻫ= ۱۸۴۰ع) ئې‌دترجمې له کاره فارغ‌شوی‌دی.اودمیجر راورټی په‌د کتابو په‌مجموعه اړه لری .

معین‌الدین په‌یوه‌پارسی لیک کښې‌هسې‌وایي: چه‌دی‌دچارسدې(اشنغر) میشت‌دی ، اوداتر جمه ئې داتمان په کلی(۳) کښې تمامه کړېده .

---

(۱) دفهرست ۳۱ مخ . (۲) د فهر ست ۳۲ مخ

(۳) په‌اصلی‌نسخه کښې اتمان ویل کېږی، ښایی چه‌اتمان‌وی .

د کتاب پيل :

| | |
|---|---|
| د ا آ غاز مي په نامه د پاك خالق دی | چه په عشق ئي دعذراسوی وامق دی |
| شني ما نمي ئي په هوا کړی اوبزاندی | يو دبل په سر ولاړی لاندی باندې |
| چه قدرت ئي د مخلوق په بهبودر اغی ء | له پر دې دعدم ځکه وجود راغی |

د کتاب پای :

| | |
|---|---|
| داکتاب چه په اتمام و ر سيد ه | ځما هسی لـه هجرته ياد بده |
| چه يوزردوه سوی شپېز پنځوس صاحبه | دهجرت کالونه تېرووبوالعجبه |

تمت تمام شد کتاب عذر اوامق از دست فقير حقير پرتقصير خاکپای عالمان معين الدين اين کتاب برای پاس خاطر ياران واشنا يان تصنيف کرده، که متو طن به هشت نگر خصو صاً چهار سده است، وتمام يافت اين کتاب درقريهٔ انمان (؟) زير درمسجدپرهوس (؟) دروقت پيشين بروز جمعه درماه ذوالقعده...» (۱)

## «۳۲» پښتو مثلونه

په نمبر (O.P-۲۸۳۲) په (۲۷) مخه کښې د بريطانيا په موزيم کښې شته، او تقطيع (۱۱× $\frac{1}{۲}$ ۷) ا نچه ده، دمخو ليکو ئي (۱۵) دی، ا و د هيو ز ليارہ غلا م جيلانی پېښو ری دفرو ری په او اسمه (۱۸۷۵ ع ) کـال ليکلی دی.

دا کتاب دپښتو متلو نه دی، چه دالفباء پرردیف برا بر دمولوی سيداحمد نومی لـه خو ا پـه کوهاټ کښې ټول شوی، اوترتيب شوی دی، کتاب داسی شروع کېږی.

«اوزی ته چا ووې چه خلور اوخلو ر څو کېږی ـ وې اته ووړی».

«ادې لېونی په ژمی کښې باتنګن غواړی».

«ادې په سمه او کـه ئي په سوات» .

مسټر هيو ز پردغه کتاب داسی ياد داشت ليکـلی دی: «شپېز سوه نه اويا پښتو متلونه دی، چه پر الفبائی رديف سم مو لوی سيد احمد د کوهاټ ديو سفرو د کلی امام ترتيب کړی دی ، دی د کوهاټ دمشهور ملازوی و، چه دسوات دمشهور اخوند صا حب خليفه بلل کېدی» (۲)



د بريطانيا دموزيم له فهرسته دغونی نوی معلومات لاس ته راغلل، چه په لوړه مقاله کښې و کښل شوه، دامعلومات زمونږ دپښتنوشاعرانو او دپښتو ادب معلومات خه نه ځه را مکمل کوی.

کابل ۳۰ عقرب ۱۳۲۳ (عبدالحی حبيبی)

---

(۱) دفهر ست ۳۲ مخ. (۲) دفهر ست ۳٤ مخ.

# نگاهی

## به فن کتاب نویسی و میناتور سازی افغانستان

### مخصوصاً در قرن نهم هجری

بنا غلی نعیمی :

نظری بدوره‌های قبل از اسلام ـ نظری به‌دورهٔ اسلام تاعصر مغل ـ نظری به‌دورهٔ مغل ـ دورهٔ تیموریان ـ خط و کتاب درین عصر ـ مذهب کاری دراین عصر ـ مصوری ومینا تورسازی درین عصر ـ دنباله‌های مکتب نقاشی هرات : اول ـ درماوراءالنهر ـ دوم : در فارس

نظری بدوره های قبل از اسلام : ـ برای معرفی کردن مدنیت‌های مختلفهٔ یك قوم یك ملت ویك مملکت روشن کردن تاریخ ومخصوصاً تاریخ صنائع آن اهمیت بسزائی دارد . همانطوریکه آریانای قدیم یاخراسان‌قرون وسطی وافغانستان جدید کانون‌مدنیت‌های مختلف آریائی‌های شرقی بوده وتاریخ آن‌از بر جسته ترین‌تاریخ ممالك‌دنیا ست از نقطهٔ نظر صنائع‌وتاریخ آن نیز پرورش گاه بزرگی بشمار می‌رود چون تا کنون‌درقسمت‌روشن کردن صنائع‌قدیم و تاریخ صنائع کمتراهتمامی به‌عمل آمده‌ومورد تفحصات وتتبعات عمیقی که درخور آن است قرار نگرفته ، معلومات ومدارك کافی درین‌خصوص‌بدست‌نداریم. بنابر آن امید است نویسندگان ودانشمندان محترم که در افتخارات باستانی این کشور کهن علاقه سهم دارند درین باره توجه فرموده‌روشنی های خوبی‌بیاندازند.



بناغلی علی احمد خان « نعیمی »

در جملهٔ فنون وصنائع دیگر موضوع فن کتابت ونقاشی در افغانستان خیلی مهم ودلچسپ است‌واگر خواسته باشیم که‌دربارهٔ آن‌مطالعات‌عمیق وبسیطی بنمائیم‌طوریکه بیشتراشاره شدنظر به قلت‌مدارك دچار مشکلات زیادخواهیم گردید‌وبرای این کاروقت‌وحوصلهٔ کافی‌بکار خواهد بود . لهذا درین مقاله مختصر مخصوصاًفن کتابت‌ونقاشی افغانستان رادر هرات به‌عصر تیموریان‌مورد مطالعه‌قرارداديم .

فن کتاب نویسی ومیناتور سازی که درقرن نهم هجری افغانستان ومخصوصا در هرات به اوج کمال رسید طوریکه دیده میشود به خودی خود وناگهانی بمیان نیامده بلکه کاری بوده که ازهزاران سال رواج داشته ودرین عصر به اوج ترقی رسیده است .

تاریخ خط و کتابت در آریانا اززمانهای بسیار پیش رواج داشته است .

چنانچه حفریات مهانجا دیرو ونوشته هائیکه درروی آجر وتیکرازان جا کشف شده این فن را درشرق آریانا تائید مینماید. اما اینکه موضوع کتاب نویسی چه وقتی درین سرزمین شروع شده است، بصورت قطع چیزی نمی توان گفت مگر با آن میتوان عقیده داشت که اینهم مانند رسم الخط و کتابت تاریخ قدیم وبسیار قدیم دارد .

قرار اذعان عموم مدققین فن کتاب نویسی واستنساخ کتب در آریانا حتی درعصر اوستا که دومین مرحلهٔ تاریخ آنست، رواج داشته است، چنانچه میگویند اوستا بحکم ویشتاسب پادشاه دودمان اسپه بلخ بقید تحریر درآمده طبری که سند آن معلوم نیست میگوید اوستارا روی پوست گاو نوشتند. موقعیکه سکندر درشرق وارد شد نسخه های تحریری اوستا در آتشکده هاویا اقلا یکی دونسخهٔ آن وجود داشت . وقراریکه میگویند اسکندر درامحای آنها تااندازه کوشیدولی بکلی ازبین برده نتوانست.

درعصر پارتی «ولش» یا «ولخش» اول که معاصر «نروند» امپراطور روم سلطنت داشت درربع سوم قرن اول مسیحی درراه جمع آوری و استنساخ پارچه های مختلف اوستا اقدام کرد.

موسیو «بن ونیست» مستشرق معروف فرانسوی راجع به نسخهٔ «یاتکار زریران» به پهلوی ساسانی به این نتیجه میرسد که اساسا ازروی کدام رسالهٔ که اصلا بزبان پهلوی پارتی نوشته شده بود استنساخ شده (۱) ارساس (۲٤۸ - ۲٤۹ ق . م) موسس سلالهٔ پارت ها ، باختری وازقبیلهٔ پکت یاازعشیرهٔ «داهی» بلخی بود . که بعد از اعلان استقلال دیودوت (درحدود ۲۵۰ ق م) بطرف حوزهٔ هری رود رفته و از آنجا وارد پارتیا شد وتشکیل سلطنت نمود ، وبعد از کشته شدن فرداتس دوم وارتبان دوم درعرصهٔ ٤ سال (۱۲۰ - ۱۲٤ ق م) اهمیت ونفوذ پارتها درحوالی غربی آریانا خیلی کم شد . (۲) هیوان تسنگ چینیکه در ٦٤٤ م بعد از سیاحت معروف خویش درآریانا وهند . به چین باز گشت یك تعداد کتب خطی قیمت دارونقشه ها وتصاویر ومجسمه های فوق العاده زیبارا از آریانا وهند باخود به چین برد .

ودریك جشن باشکوهی که درسال های بعد به نسبت داخل شدن هجده هزار وهشت صد جوان به کیش بودائی درمعبد سی نگان فو : گرفته شد تمام این کتب وآثار آریانا وهندرد

---

(۱) تااینجا ازص ۱۳۲-۱۳٦ سالنامهٔ ۱۳۲۲ مقالهٔ شاهنامه هاومقایسه میان بعضی پهلوانان آن واوستا نگارش احمد علی کهزاد استفاده شده .

(۲) ص ۱۱۵ - ۱۲۵ تاریخ افغانستان جلد ۲ مؤلف کهزاد .

معبدمذکور بمعرض نمایش گذاشته‌شد رونه‌گروسه مستشرق معروف فرانسوی میگوید که کتب مذهبی وتصاویر مذکور رادران جشن بالای یکهزارو پنجصد عرابه هائیکه با پارچه های زربفت وبرچمها ورشمه‌های ابریشمی مزین شده بود حمل میکردند . در جملهٔ تصاویر یکه در آن جشن بمعرض نمایش گذاشته بود ، دوصد قطعه تصاویر بودا نیز بود که بتوسط استادان معروف هند وگندهارا ( آریانای شرقی ) بروی پارچه های ابریشمی کشیده شده بود .

درسال ۱۹۳۰ میلادی درحصص شرقی هیکل ۳۵ متری بامیان دراثر کاوش ها وتفحصات هیئت باستان‌شناسی فرانسه درافغانستان‌نوشته‌های درروی پوست به‌زبان‌سانسکریت کشف شد که‌به اجازهٔ وزارت معارف بطور امانت‌به‌فرانسه‌ارسال گردید تاموسیو«سیلون لوی» انهارامطالعه نماید.

رویهمرفته موسیو سیلون‌لوی این نوشته‌هارا ازروی‌اقسام رسم‌الخط به‌چند دسته تقسیم‌میکند.

اول ـ نوشته های « کوشانا » مربوط به‌قرن ۳ و ٤ م .

۲ نوشته های « گوپتا » مربوط به قرن ۷ و۸ م .

۳ ـ انواع رسم‌الخط های آسیای مرکزی . باین ترتیب انواع رسم الخط سانسکریت که‌دراقطار امپراطوری وسیع کوشان رواج‌داشت، دربامیان دیده‌شده واین نوشته‌ها نشان دادند که کتاب‌هائی به‌سانسکریت مربوط به‌اقسام رسم‌الخط دربامیان‌جمع آوری شده‌بود.چون قدیمترین رسم‌الخطها مربوط به‌قرن ۳ وجدیدترین آنها‌به‌قرن ۸مسیحی منسوب می‌باشد، معلوم‌می‌شود که‌دز عرصهٔ پنجصدسال کتب درینجا جمع ویانوشته شده است.

بعقیدهٔ «سیلون‌لوی» در کتابخانهٔ آن معبدبامیان که‌نوشته‌های مذکور از آن کشف گردیده یا کتب نقاط مختلفه راجمع آوری‌نموده‌بودند ویا کاتب‌های نقاط متعدده در خوددرهٔ بامیان به‌نقل ونوشتهٔ آنها پرداخته‌اند.چون بعدازقرن۸مسیحی نوشته‌ئی پیداشده‌وبواسطهٔ نزدیک‌شدن مسلمین‌وضعیت بت‌پرستان مشرف به‌خطر گردیده‌بود، معلوم می‌شود که‌راهبین بودائی تا آخرین مرحلهٔ مساعد که‌هنوز وضعیت درهٔ‌بامیان برهم‌نخورده‌بود مصروف نقل کتب مذهبی بودائی بودند . (۱)

تمام اینهائی که‌فوقاً تذکار گردید، نشان میدهند صنعت کتابت و استنساخ کتب ونقاشی درافغانستان پیش ازاسلام کمال‌رونق وترقی راداشته‌است. حالا برگردیم‌به‌دورهٔ اسلام .

## نظری به دورهٔ اسلام تا عصر مغل :

فن کتاب نویسی درافغانستان دورهٔ‌اسلامی دنبالهٔ همان فنی‌است که‌درافغانستان قبل‌از اسلام بود اما باخط واسلوب جدیدیکه آئین مقدس اسلام آن را باخود آورد همچنان راجع به مینا تورسازی هم‌می‌توان گفت که دنبالهٔ نقاشی‌ها ومصوری های‌دیواریست که‌درپیش ازاسلام‌موجود

(۱) صفحهٔ ۱ـ ۷ شمارهٔ ۱۹ مجلهٔ آریانا مقالهٔ کشف متون قدیم سانسکریت در بامیان نگارش احمد علی کهزاد استفاده شده .

وحتی دراوایل دورهٔ اسلامی مخصوصاتااواخر قرن٤ استعمال آنهادردیوار های تالارودهلیزهای قصور شاهان وامرامروج بوده ونقاشی های کاخ فیروزهٔ سلطان محمود غزنوی که‌فرخی سیستانی دریکی ازقصاید خود آنرا مفصلا تذکار کرده شاهداین مدعاست .

درابتدای دورهٔ اسلام تنهاویگانه کتابیکه مورد توجه کاتب ها وخوشنویسان قرار داشت کتاب‌مقدس وآسمانی قرآن‌مجید بود که‌با خطوط کوفی وبعدتر باخط نسخ استنساخ میگردید این‌نسخ شریفه عموما باتذهیب کاری هاو نقاشی های رنگه هندسی ولاجورد کاری‌های‌مزین میشد . یعنی درابتدای دورهٔ اسلام فن‌نقل کتب واستنساخ بامذهب کاری توام گردید .

قرآ ن‌ها ئیکه درقرن چهار الی قرن شش هجری نوشته اند ، زیبا ترین وگرانبها ترین قرآن هااز جنبهٔ نقاشی وفن استنساخ میباشند زیرا تعظیم واحترا می که ازقرآن کریم بعمل می‌آید بیشتر هنرمند انرا وادار می‌نمود که‌در تذهیب آن‌دقت کامل مرعی دارند .

امااز اواسط قرن سه به‌بعد در ضمن استنساخ قرآن کریم ، خوشنویسان وکاتب ها به‌نقل ونوشتن کتب دیگر نیز پرداختند ، واین کتب‌را علاوه برتذهیب کاری گاهگاهی مصور هم می ساختند . چنانچه قدیمترین نسخهٔ خطی خراسان آنوقت یاافغانستان امروزی که‌مطالب آن‌با نقاشی‌ها وتصاویر روشن شده کتاب کلیله ودمنه است که‌نصر بن احمد سامانی (۳۰۱ - ۳۱۳ هجری ) آن‌را برودکی شاعر دادتا ازعربی بفارسی درآورد . وپس ازآن به‌هنرمندان ونقاشان چین‌داد تانقاشی کنند وحکایات آن‌را بااشکال وصور توضیح دارند . (۱)

درعصر غزنویان فن استنساخ کتب بیشتر مروج گردیده ونسخهٔ قلمی کتاب الابنیه عن حقایق‌الادویه مولفهٔ ابومنصور موفق‌الدین علی هروی بخط حکیم‌اسدی طوسی صاحب کرشاسب نامه‌و ومئو لف‌لغات فرس‌وغیره کتب که ازین دوره‌بدست است شاهداین مدعامیباشد . (۲)

نظری به‌دورهٔ مغل : فن استنساخ کتب و نقاشی آن‌درافغانستان درین دوره‌نسبت به‌دورهٔ صدر اسلام تاریک تراست . تنها چیزیکه را جع به‌آن می‌توان گفت این است که باید نقاشی کتب‌در دورهٔ مغول بیشتر تحت تأثیر نقاشی های سبك چین رفته باشد زیرا دوسلسله شاهانیکه درسر اسرقرن‌هفت‌وهشت هجری‌درچین وافغانستان حکومت داشتند ، هردو ازنژاد مغول بوده ورابطهٔ نژادی آنهارا بهم نزدیک کرده بود . علاوه بران هنگامی که مغول ها متوجه‌خراسان وفارس شدند عدهٔ ازهنرمندان وصنعتگران ومترجمین چینی را باخود همراه آوردند ( ۳ ) وبهمین جهت است که‌مستشرقین آثارفنی‌وسبکهای شرق‌اقصی‌را ازابتدای‌دورهٔ مغول در فنون آنوقت خراسان وفارس جستجو ومشاهده میکنند .

---

(۱) صفحه۸٤ ترجمه تاریخ صنائع ایران بعداز اسلام ترجمه محمدعلی خلیلی طبع طهران .
(۲) ص ۱۶ مقدمهٔ کرشاسب نامه طبع طهران .
(۳) ص۹۲ صنایع ایران بعد ازاسلام ترجمهٔ محمد علی خلیلی .

چیزیکه بیشتر تاثیر اسلوب نقاشی های چین را درنقاشی های افغانستان به دور مغول تائید میکند همانا قسمتی از تأثیرات آن اسلوب دراوائل دورهٔ تیموریست که بعدتر آن را مطالعه خواهیم کرد.

چون دورهٔ مغولی درافغانستان کوتاه وسراسر با جنگ وخونریزی توأم بوده کمتر اثرونمونهٔ از نقاشی های آن دورهٔ افغانستان باقی مانده است واز همین جهته است که دراطراف چگونگی آن نمی توان تفصیلات کافی داد. تنها اینقدر معلوم است که در آن دوره بیشتر کتاب جامع التواریخ رشیدی مؤلفهٔ رشیدالدین وزیر که تاریخ چنگیز یست، استنساخ ومصور می شد و شاهنامهٔ فردوسی وبعد از آن کلیله ودمنه نیز مورد توجه کاتبان ونقاشان قرار داشت .

<u>دردورهٔ تیموریان</u> :- تیمور درسال ۷۸۲ هجری شروع به تسخیر فارس وخراسان (افغانستان) نمود. مانند فتنهٔ مغول فتح تیمور باخرابی وویرانی بسیار همراه بودولی هنرمندان و صنعتگران شهرهای تسخیر شده بسمرقند برده شدند، ومعماری وصنعت درآنجا تشویق و ترغیب شد. درین شهر ومخصوصاً درزمان جانشینان تیمور درهرات میناتور سازی و کتاب نویسی به منتهی درجه ترقی خود رسید .

گرچه شاهرخ چهارمین فرزند تیموربود، امادرموقع مرگ پدر در خراسان (افغانستان) حکومت میکرد ودرنتیجهٔ بعضی پیش آمد هاوازث امپراطوری وسیع تیمور و جانشین او گردید شاهرخ پای تخت خودرا بهرات انتقال داد شاهرخ خودش شاعر وصنعتگر بود پس ازاو پسرش بایسنغر بیش از پدر مشوق وحامی صنعت وعلم وادب گردید. چنانچه کتابخانهٔ بزرگی در هرات تاسیس نمود ودرآنجا چهل نفر از بزرگترین نقاشان، خوشنویسان وصحافان راجمع کردودرتحت نظر این اکادمی صنعت و بدست آنان عصر طلائی کتب نویسی و میناتور سازی افغانستان بوجود آمد .

شاهرخ درسال ۸۵۰ هجری وفات یافت وپسرش بایسنغر که حامی ومشوق صنعت وادب بود قبل ازپدر پدرود زندگانی گفته بود پس ازمرگ شاهرخ مملکت دچار هیجانها و اضطرابات بزرگ شده ومدعیان تاج وتخت سلطنت زیاد گشتندولی باوجود این انقلابات وتحولات نقاشی به ترقی وپیشرفت خودادامه داد. بالاخره سلطان حسین بایقرا به تخت سلطنت نشست وبعد ازسی و هفت سال سلطنت در ۹۱۱ هجری پدرود حیات گفت خود سلطان ووزیر معروف اومیرعلیشیر نوائی مشوق وحامی صنعت بودند .

<u>خط و کتاب نویسی درین عصر</u> :

خوشنویسی وتوجه بخط امریست که ازسالیان دراز درهمه جابا بشر یکجا بوده وآن را دوست داشته است. درافغانستان هم که مردمان آن متدین ادب دوست وشعر پرور هستند، این صنعت به نسبت اشد احتیاج مردم به نسخه های قرآن مجید، کتب ادبی ودواوین شعرا کسب وسعت نموده

برعدهٔ خوشنویسان وخطاطان روز بروز افزودی بعمل آمد، وآثار آنها با پول وتقدیر زیاد خریدار ی واستقبال شد .

خوشنویسان برای ازدیاد مفاخر وشهرت خویش نام خودرا برخلاف روش نقاشان و صورت گران درزیر خطوطی که می نوشتند قید میکردند. وبهمین جهت است که نام انها ازصفحهٔ تا ر یخ نیفتاده وراجع به‌ترجمهٔ حال آنها ماخذ ومدارك زیادی دردست ا ست .

درمقابل این خوشنویسان معروف یکعده ازنساخها وکاتبان بی‌نام نیزوجود داشت که مشغول نوشتن کتب بدست مزد ارزانتری بودند واین کتب‌را کسانی خریدار بودند که بداشتن کتب خطی گرانبها قادر نمی شد ند .

دراوایل اسلام که نساخان وکاتبان کشورافغانستان به‌نوشتن کتب پرداختند و سیلهٔ نگارش آنهاجز خطوط کوفی چیزدیگری نبود. این خطوط دارای همه گونه صفات تزئیناتی میباشد یعنی نویسنده و کاتب بهرشکلی که خواسته باشد آنرا آورده می تواند وهمین امتیاز رفته رفته سبب شد که خوشنویسان بفکرایجاد خطوط دیگر بیفتند. دردورهٔ غزنویان خط کوفی بردقت وزیبائی خود افزوده واز آن خط نسخ نیز بوجود آمد، ودرقرن هفتم هجری خط تعلیق ظهور کر د .(۱)

درقرن نهم هجری خط دیگری که موسوم به نستعلیق (مرکب ازنسخ وتعلیق ) بود ظهور نمود واز آنوقت به‌بعد بیشتر کتب خطی به‌این خط نوشته شد. این خط بحدی شیوع و رواج پیدانمود که اگر اکنون کتابی بخط نسخ دیده شود بیقین گفته میشود که از کتب پیش ازقرن نهم هجر ی یعنی قبل ازدورهٔ تیموریان ا ست .

شناختن خطوط مختلف ومتنوع بر کسانی که اهل فن نیستند، واز خط بهره ندارند مشکل است وغیر ازخوشنویسان ومتخصصین فن کسی دیگر نمیتواند کاملاً تفاوت وامتیازات خطوط مختلفه رااز همدگر که دردوره‌های مختلفه درخراسان وفارس وغیره مورد استعمال بودند، درك کنند. اگرچه تا حدی بکمك مآخذ و معلومات درین خصوص اظهار نظر می‌شد امانظر به‌قلت وقت وعدم گنجایش صفحات سالنامه عمدااز ان صرف نظر گردیده به‌وقت دیگر ومقالهٔ دیگر مو کول شد .

پیشتر گفتیم که در قرن نهم هجر ی یعنی در عصر تیمو ریان هرات خطی بنام نستعلیق بمیا ن آ مده واز آنوقت به بعد رواج کا مل یا فت این خط ر ا میـر علی تبر یز ی که به‌دربار تیموری پرورش یافته بود اختراع کرده وپس ازوی پسر ش عبدالله آنرا ترقی داد.

خلاصه دورهٔ تیمور یان هرات درتاریخ خط وخوشنویسی دورهٔ طلائی بشمار می‌رود زیرا این سلسلهٔ هنردو ست ازخوشنو یسی تشویق و حمایه وازخوشنو یسان تقدیر وتمجید کرده‌اند علاقهٔ این خانواده به‌خط وکتا ب نویسی وصنعت وادب به‌پایهٔ بو د که اکثر شهز اده گان آن مانند ابراهیم میرزا وبا یسنغرد ونوادهٔ تیمور ازائمه خوشنو یسان وشعر ا بودند.

---

(۱) ص٦٦ تاریخ صنایع ایران بعد ازاسلام ترجمهٔ محمدعلی خلیلی .

این هم باید تذکرداده شودکه درعصر تیموریان دوخط دیگر یعنی خط دیوانی وخط دشتی نیز بوجود آمد .(۱) و اگر خوشنویسی درین دورهٔ بحد کمال خود نمی رسید صنعت مذهب کاری ومیناتورسازی درهرات ظهوروترقی نمیکردودرتاریخ صنایع شرق صنایع مکتب هرات فصل برجسته ؤمهمی رااحراز نمی نمود .

مذهب کاری درین عصر: پیشتر تذکار نمودیم که ازاوایل اسلام نسخه های خطی قرآن کریم ودیگر کتب بتوسط خطاطان وخوشنویسان استنساخ می گردید مذهب ونقاشی نیزمی شدند، یعنی ازهمان آوان خوشنویسی بامذهب کاری توام بود. دردوره های اسلامی درجملهٔ صنعت گرانیکه بفن کتاب نویسی اشتغال داشتند .

تااواخر عصرتیموری بعد ازخوشنویسان مذهب کاران برسایر هنرمندان مقدم بودند. احتمال کلی میرود که در استنساخ ونوشتن یك نسخه اول خوشنویس عمل خودرا تمام نموده ومحل عمل مذهب کارونقاش را سفیدمی گذاشت. بعد از آن که کتابت نسخه به اتمام میرسید بدست مذهب کار یاصورتگر سپرده میشد تاآن هم کارخودرا انجام داده منقش ومذهب سازد. چنانچه هنوز بعضی نسخه های خطی باقی است که قسمتی ازمذهب کاری هاوترسیم رسوم آنها ناتمام مانده وهمین امر دلیل آنست که اول کتاب نوشته میشد وبعد از ان به مذهب کاران ونقاشان داده میشد که حواشی وصفحات اول وآخر وسرفصلها و عناوین واول سوره های مبارك وغیره را تذهیب کاری نمایند. درقرن نه وقرن ده هجری رسوم واشکال هندسی وشاخ وبرگهائیکه درمذهب کاری استعمال می شد بخود جنبهٔ فنی راگرفته ترقی زیاد کرد.

درقرن نهم هجری برعلاوهٔ تزئینات وآرایش های سرلوحه ها و ستاره هائیکه شمسه نامیده می شدند، حواشی نسخه ها نیز بانباتات وگل ها وحتی اشکال حیوانات و تصاویر انسانی مزین میشدند.

راجع به قدیم ترین کتاب مذهب شده تحقیقاتی که کرده و کار آن را به خراسان نسبت داده اند، کتابیست که مربوط بقرن ٤ هجری میباشد. اغلب رسوم و اشکالی که درین نسخه ها بکار رفته عبارت ازستاره های شش پهلو وهشت پهلو وپاملت ها (شاخه های نخل) واشکال «ارابساك» (شاخه های بهم پیوستهٔ نباتی) است. اما تذهیب کاری های دورهٔ اخیر مغل وعصرتیموریان رسوم واشکال گوناگونی ازقبیل ستاره های متنوع، اشکال هندسی هشت گوش، ودایره های مشبك ودرهم وغیره اشکال دیگر که مملو از اشکال نباتات است دربر دارد. درین دوره مذهب کاران رنگهای طلائی وآبی وقرمزوسبزرا بیشتراستعمال می

(۱) کتاب تاریخ صنایع ایران بعدازاسلام ترجمهٔ محمد علی خلیلی .

کردند وغالباً آبی تیز یا لاجوردی را مرکز ومتن قرار داده سایر رنگ هارا در آن بکار میبردند.

دردورهٔ تیموری هرات بررونق فن تذهیب کاری افزوده شد واز جملهٔ شاهکارنی های مذهب کابل این دوره نسخهٔ از شاهنامهٔ خطی موجود است که بتاریخ ۸۳۱ هجری نوشته شده(۱) وقراریکه می گویند تصویر مذهب کار ونقاش که در فراهم آوردن آن اثر شرکت وهمکاری داشته اند وهمچنان تصویر بایسنغر که نسخهٔ برای اونوشته وتقدیم شده بود، در آن نسخه کشیده شده است. ازوجود تصویر مذهب کاردرین نسخه می فهمیم که اونیز مقام ومرتبهٔ مهمی داشته وعلو مقام او کمتر ازخطاط ونقاش نبوده است ازمذهب کاران معروف آن دوره امیر خلیل نقاش کهباری درزمان شاهرخ بحیث نمایندهٔ بایسنغر بن شاهرخ باهیئت سفارت افغانی بچین وکاشغر رفته بود، ومیرك نقاش که سمت استادی بهزاد معروف رادرنقاشی داشت (۲) ومولانا حاجی محمد نقاش رامیتوان تذکار نمود.

حاجی محمد از هنروران هروی الاصل قرن نهم هجریست وباسلطان حسین میرزا معاصر بوده است اوایل زندگانی او معلوم نیست در ابتدا به نزد میر علی شیر نوائی وزیر سلطان حسین بایقر اتقرب داشته چنانچه مدت های مدید سمت کتابداری اورادارا بود دراواخر ازامیر موصوف نگرانی خاطر حاصل نموده هوای خدمت گذاری بدیع الزمان میرزا پسر سلطان حسین میرزا را که در آن آوان والی سیستان بود بدل می پرورانید وهنگامیکه بدیع الزمان بنای شورش را برپدر گذاشته درحدود سنه ۹۰٤ هجری هرات رامحاصره کرد حاجی محمد از شهر هرات فرار کرده بشهزادهٔ مذکور پیوست ودرخدمت او اعتبار زیاد حاصل نموده به کتابداری اومقرر گشت. حاجی محمد نه تنها هنرمندلایق ومذهب کار معروف هرات است بلکه برعلاوه شاعری وادب دوستی دارای قوهٔ اختراع وابتکار درصنعت نیز بود چنانچه یکی ازمخترعات اوراصاحب حبیب السیرچنین تعریف می کند (۳) از جملهٔ مخترعات مولانا حاجی محمد صندوق ساعتی است که در کتابخانهٔ امیر نظام الدین علیشیر ترتیب نموده ودر آن صندوق صورتی تعیین کرده بود که چوبی دردست داشت وچون یکساعت ازروز می گذشت آن پیکر چوب را یك نوبت برنقارهٔ که در پیش او بود می زد بعداز گذشتن ساعت دوم دونوبت آن حرکت می کرد وعلی هذالقیاس » :

امیر علیشیر درتذکره معروف خود اورا چنین میستاید : «نقاش شهر هرات ومرد خوش طبعی است. خیالات غریب میکند وکم فنی باشد که اورا در آن اندیشهٔ بخاطر نرسد ... حالا در عراق است. (٤) »

(۱) ص ۷٦ کتاب تاریخ صنایع ایران بعد از اسلام ترجمه محمد علی خلیلی طبع طهران (۲)راجع به میرك به کلکسیون سال اول مجلهٔ آریانا مراجعه شود.(۳)ص ۳٤۲ حبیب السیر ج ۲ طبع ۱۸٤۷ درهند. (٤) ص ۲۵۵ لطائفنامهٔ فخری .

يوله هغوځخه هغه ځای دی چه دمسند اليه پروجود پوداسی ښکاره دليل موجود وی چه دده راوړل فضول ښکاري مثلاً يو کتاب مو په لاس کښې وی او و.وايو . « پټه خزانه ده ! » مقصد دادی چه ( دا کتاب پټه خزانه ده ! ) اوبل په هغه ځای کښې حذفيږی چه و يونکی بی له مخاطبه بل څوك پهحال نه خبروی لکه ديوچا پهباب کښې خبر ی کو ی ء چههغه تاسی او مخاطب تهمعلوم وی نووواياست« ووژ ل شو » يعنی هغهسړی چهتاسی او مخاطب تهمعلوم دیووژل شو !

۲ : ـ تعريف او تنکير : ـ دنحو دعلم پهقرار اصله داده چه مسند اليه معر فه وی اومعرفه هغه اسم دی چهدمعين شی دپارهوضع شوی وی يعنی ښهداده چهمسنداليه معروف اوښکارهوی اوپه مسند کښې اصله دادهچه نکرههغه ده چه دغيرمعين شی دپاره وضعشو ی وی لکه د«سړی» لفظ چهنکره اوغيرمعين وی مگر کهوويل شی چه « دغهسړ ی ! »البته هغه وخت معرفه کيږی دمسنداليه تعريف پهځو شيانو اړه لر ی :

پهضمير ـ پهعلميت ، پهاشارت ، پهموصول ، پهالف ولام ، په ندا اويا چه معرفیته مضاف وی مثلاً پهضميرسره داسی معرفه کيږی چهپه خبرو کښې مسند اليه ته دخطاب يا غيبت ياتکلم ضمير راجع شی چهضميرونه نو(ته ، دی ، زه ) او نورد ی همدارنگه په علميت معرفی کيږی چهنومئی واخلی مگردانوم اخستل بهيادسړی دحاضريدو دپاره وی لکه چهوايو «زلميهراشه» ! اويابه داحترام اوتعظيم پهتوگهوی چه ووايو : «پهای احمدشاه بابا فتح کړ !»اويا به د اهانت اوسپکوالی پهډول وی چهووايو « خروټل دی ! » اوداچه په اسمأاشارت معرفه کيږ ی داهم د تعظيم اواهانت ليریوالی اونژ ديوالیحالاتلریچه نومونه ئیدادی «دا ، دغه ،هغه ، هوغه ، ها اوپه اسمأموصوله چهمعرفه کيږی په پښتو کښې« هغه چا » او « هغهڅوك » شته اوپدې تورو ځکه معرفه کيږی چهمتکلم بیاهصلی دمسنداليه احوال معلوملای نشی ملا وايو «هغهڅوك چه پهبل پوری خاندیځان سپکوی »يا « گټه هغهچاو کړه چهزيار ئیويوست ! »اودا چه مسنداليه پهالفولام معر فه کيږی دايواز ی په عربیژ به کښېزاځی، لکه «الرجل» په پښتو کښې نشته ځکه نو مونږ تر تيريږ و اوپه ندا سره چه معرفه کيږی داسی دی لکه چه نار ی کړو : ـ آ سړيه کښېنه ! دلته دندا په حرف سره هغه مخصو ص سړی دنورو سړيو لهډ لی څخهوتا کل شو

اوپهاضافت: چهمعرفه کيږی هغهداسیدی چهووايو: «دبريالی آس» يا «دسدونو کړ!» ځکه چه آس اونو کړ يوهممعروفهنه و خو بريالی اوسدوته چه ئی مضاف کړه معرفه شول .

دمسنداليه تنکير : دمسنداليهدتنکيرڅخهبه يامراد افرادوی نو کهدادمفرد پصورت وی او که دجمع لکه داجملهچه : «سړیويلی دی » يابهمرادنوعه وی لکهچهووايو : پوهنه رڼادهـ اويا بهمراد لږوالی ، ډيروالی ،تعظيم او يا تحقيروی .

۳ :اتباع او فصل: دمسنداليهداتباعڅخهمراددادیچهمسنداليهپه يوهدځلورو نحویتوا بو پوری ونښلی ، توابعدادی :

« ۱ » مختصرالمعانی ـ ۶۹ مخ .

وصف ، توکید، بدل، عطف . چه له وصفه څخه د مسندالیه د حال بیان مقصود دی که مدح که ذم او د توکید مقصود د مسندالیه څخه د توهم رفع کېدل دی، چه د مسندالیه په تحقیق او تثبیت کښې څه شک او وهم پاته نشی . او د بدل څخه مقصد ایضاح او څرګندول یا د تقریر ډېر والی دی ، مګر د مسندالیه اتباع په عطف پورې به یا د تفصیل د پاره سره د اختصاره او یا به د دې د پاره وې چه د کلام پر ترتیب دلالت وکړي او یا نور.
چه دا بحث په نحو اړه لري .

د مسندالیه فصل : د مسندالیه فصل دا دی چه د ده او مسند په منځ کښې یو عمده ضمیر یعنی د فصل او جلاوالی ضمیر راشی - لکه په پښتو کښې چه کله کله وېل کېږي : « سدو دوي خوشاله دی ! » (دوی) منفصل ضمیر دی چه د سدو او خوشاله تر منځ راغلی - د فصل فائده تخصیص او توکید دی .

٤ د مسند وروسته والی او اند یوالی: د مسندالیه حق دا دي چه وړاند (مقدم) وی ځکه چه ذهن ته وارد واره مسندالیه لارموی او هم پر ده باندې حکم کېږي او هم له دې جهته باید مقدم وی چه د مسندالیه په راوړلو داړو پدونکی شوق خبر ته ډېر زیاتېږي ، او کله کله چه مسندالیه تر مسند وروسته کېږی هغه به ضرور د کم مقصد د پاره وي چه د مسند په حال کښې به د رته راشی .

## ۲ : مسند

د مسند تعریف خو د مخه د رته ښېر شو چه مسند د موضوع یعنی مسندالیه ښکاره خبر دی او د معانی د علم پوهانو ډېر اوږده بحثونه پکښې کړي دی، خو مونږ ئې د لته لنډوو، او مهم مهم شیان ئې راوړو :

د مسند حالونه:- مسند څو ر حاله لری چه د ري حاله د ده او مسندالیه په منځ کښې سره شریک دی چه د مسند راوړل او حذفول ، تعریف او تنکیر، تقدیم او تأخیر دی ، او څلورم حال خاص په مسند اړه لری چه دا نو د مسند افراد او اجمال دی .

۱ : د مسند راوړل او حذف : - د مسند د راوړلو مقصد د مسندالیه څخه د حکم افاده ده ځکه چه مسند نه وي معنا نیمګړي پاتېږی او کمال ته نه رسیږی او مسند کله په زمانه پورې اړه لری لکه چه ووایو : - « سدو وږو هیدی ! » او کله زمانه پورې اړه نه لری لکه دا خبره چه : « سدو ږوه دی !»

د مسند حذف : - مسند چه حذفیږی یا به د هغو غرضو د پاره وی چه د مسندالیه په حذفولو کښې د رته وویل شوه او یا هغه وخت نه راوړل کیږی چه پوه ښکاره قرینه موجوده وی او پر ده دلالت وکړی مثلاً داستفهام او پوښتنی په وخت کښې یو سړی ووایی :« سدو مړ شو ! » او ته د تعجب او استفهام په توګه ووایې :« څه وایی سدو؟ ؟ » مقصد دی دا دی چه : آیا سدو مړ شو ؟ د لته د ته داستفهام او تعجب وضعیت د مسند پر وجود قرینه ده ، یا مثلاً د پوښتنې ځواب وی لکه چه څوك پوښتنه وکړی چه : دا کتاب چا لیکلی دی ؟ او تاسی ځواب ورکړی : - « پردل » یعنی پردل لیکلی دی ! چه د لته پخپله د ځواب وضعیت قرینه ده یا نور داسی ځایونه :

۲ : دمسند تعریف اوتنکیر : دمسندله‌تعریف اومعرفه‌والی څخه مقصد دادی‌چه‌مسند په یوه ځای یایوه شي پوری مقید اوحصروی لکه چه‌یوچاته ووایو : ـ « ته‌خو دغه‌سړ ی یې ! » او مقصد مو دتوهم ور کولو اودفع‌وی چه‌ظالم نوبل یودی یعنی زه تاپیژنم ته‌خو دغه سړ ی یې ، ظ لم نه یې ـ

دمسندتنکیر : دمسندله تنکیره مراد دادی چه‌یوه ځای یایوه شي پور ی حصرنه وی لکه چه ووایو : ـ « پردل بز گردی ! » یعنی یوله‌بز گرانو څخه‌دی او که نکره داضافت یا دصفت په واسطه په‌کوم شي پوری‌تخصیص وعمومی نو مقصد دافاد ې بشپړ والی اوتتمیم دی ـ مثلاً : ـ دی دپاچا زوی دی ـ یا : دی ښېښتلی زوی‌دی ·

۳ : ـدمسند وروسته‌وړاندېوالی : مسند ترمسند الیه‌وروسته راځي ، ځکه چه‌دوړاندېوالی اوتقدیم حق‌دمسندالیه دی ، مګر کله کله دځینو عللو په اثر مسند تر مسند الیه دمخه کیښ ی چه له هغوڅخه په‌پښتو کښې داځوځایه مونډل کیږ ی :

لمړ ی دتعظیم په‌ځای کښې لکه‌چه ووایو : « لوی‌یې خدایه ! » دوهم په ځا ی کښې چه دمسنداهمیت‌یانزل پکاروی نو که له‌هغوڅخه‌مدح متصدوی که‌ذم که‌دعامر اد وی‌یادارویډونکی تنبیه مثلاً دبدستایلو په‌ځای کښې وایو : «ناروغی له بدوخوږو ده » په‌دې جمله کښې ناروغی مسند، بدخواږه مسندالیه اونا روغی نسبت بدو خوږو ته اسناد دی او یاد دعا په وخت کښې چه بېښ نیکه ویلی د ی ·

هسک ‌ئ اومځکه نغښته ستاد ه　　　　د مړ و و.د ه لـه تـا د ه

دا یا لنه ستا ده خد ایه ! !

لو یه خدا یه ، لویه خدایه !

پالنه مسنداو خدای‌مسندالیه‌دی‌اویادتنبیه په وخت کښې چه مور زو ی ته پقهر شی او له بده کاره‌ئې راګرزوی نوورته وایی : ـ ودی وزه ستر ګی سم کښېنه ! ـودی وزه‌مسند او ستر ګې مسندالیه دوتلونسبت ستر ګوته اسناد باله کیږ ی ·

٤ : دمسند افراد اواجمال : ـ دافرادڅخه مقصد ومسند یوازی والی اوښکاره‌والی دی‌یعنی داسی سبب موجودنه وی چه هغه دمسند داجمال تقاضا کوی ، مثلاً وایو : « احمدشاه بابا غازی دی ! » دلته هیڅ اجمال نشته ، مګردمسند اجمال دحکم‌دټینګوالی اوتقو یت دپاره راځی چه دا قوه نواکثراًداسنادپه تکرارحاصلیږی مثلاً وویل شي، ـ «سد ویه ولاړ ەولاړتاته ګوری !»

## ۳ : اسنا د

اسناد د مسند الیه‌اومسند په منځ کښې‌نسبت دی ،اوچه مسندالیه اومسند موو‌پیژاند نواوس باید دانسبت هموپیژنو · اسناد پردوه ډوله دی : حقیقی ـ مجازی ·

حقیقی اسناد : ـ حقیقی اسناد هغه دی چه دفعل یاشبهه فعل نسبت هغه شی ته وشی چه د ده دپاره وضع شوی وی ، مثلاً دمړ ید ار دفعل نسبت دمرحوم مخلص په لاندې مسدس کښې چه د ملت خائن ته وائي ·

دخوارې پوستین دی هر شوچه دی زوړ کی    اوس دی داسی اوی جناب له ځانه جوړ کی
دعا جز ملت په وینو دی ز ړه سوړ کی    تر پښو لاندې دی پایما له لکه پروړ کی
په حرا مو ورجوښو شودی ځان موړ کی
نفس ابلیس اری مشت پر شیطان څه دی ؟

مقصد په هغه نیم بیت کښې دی چه وایی : په حراموورجوغوښودی ځان موړ کی ـ اوس د موړوالی دفعل نسبت ورجوغوښوته حقیقی نسبت دی ، ځکه چه دور جوغوښو دخوړاووضع دمړیدو دپا ره شوی ده ··

مجازی اسناد :ـ مجازی اسناد هغه دی چه دفعل یاشبهه فعل نسبت هغې معناته وشي چه په اصل کښې دده دپاره نه وی وضع شوی لکه هغه دمړیدو دفعل نسبت دخوشحال خان په بیت کښې چه وائي

سپینه خوله ئې وماراکړه وی منی موړشم    وئې خواره وزیه داخو نیمه ریځی دی

په دی بیت کښې دموړوالی دفعل نسبت سپینی خولی ته مجازی نسبت دی ، ځکه چه سپینه خوله لکه وریجې غوښې دمړید ودپاره وضع شوی نه دی اونه خوله دمړید وشی ده او نه څوك په مړید لای شی · دحقیقت اومجاز بحث اوزددی چه دبیان په علم کښې به مفصل درته راشی·

داسناد موقع چېری ده ؟ دحقیقی یامجازی اسناد موقع اوځای په جمله کښې دی ، ځکه نو باید جمله هم څه نه څه وپیژنو ·

جمله :ـ له دوویاډیرو کلمو څخه جوړیږی اوپردوه ډوله ده : یو خبر یه بو لی بله انشا ئیه

خبر یه جمله : خبریه جمله هغه ده چه ویونکی ته ئې ددر واغو یا رښتیا نسبت کیدلای شی نو که داجمله دواقع سره مطابقه وی او که نه وی · مثلا داجمله چه « پښتون آزاد دی ! » خبر یه جمله باله کیږی . ځکه ویونکی ته ئې سړی ویلای شی چه رشتین دی یادرواغجن ·

انشائیه جمله : ـ انشائیه جمله بالعکس هغه جمله ده چه ویونکی ته ئې در ښتیا اودرواغو نسبت نشی کیدلای ، مثلاً یوڅوك دروازه وټکوی تاسی نو کرته ووایاست :« وګوره ـ څوك راغله؟» په دې جمله کښې امراواستفهام یوځای شوه ، ددرواغو یارښتیا نسبت څه معنی نلری ! ـ دانشا تور بیان به وروسته درته راشی ·

دخبریې جملې اقسام : خبریه جمله به یااسمیه وی اویافعلیه ، اسمیه خو لکه داجمله : « پردل ناست دی ! » یعنی هغه جمله اسمیه بولی چه لمړی جزوئې اسم وی . مگر دفعلیې جملې تعریف مختلف دی ، څوك وائي هغه جمله فعلیه چه لمړی جزئی فعل وی ، ددې تعریفه سره سم فعلیه جمله

په پښتو کښې نشته، ځکه‌چه په‌پښتو کښې دعربی په‌شان‌فعل ترفاعل دمخه نه‌راځی ـ اومعلومه شوه چه دادسامی ژبو تعریف دی اوخوك وایی : په ـ فعلیه جمله‌هغه‌ده چه‌په‌جمله کښې فعل‌وی نو که لمړی جزو ی او که دوهم ـ ددې تعریف په قرارنو په پښتو اوځینو نورو آریائی ژبو کښې هم‌فعلیه جمله‌شته لکه داجمله : « پردل تللی‌دی ! » ځکه چه‌دوهم جزفعل دی اوالبته داتعریف دآریائی ژبو دی دجملې‌نوربیان دنحوپه‌علم اړه‌لری ـ خودلته داهم‌باید وویل‌شی چه دخبریې جملې څخه غرض دمخاطب افاده ده‌نو که دا افاده دحکم له‌حیثه منفی وی او که موجبه وی ـ ۰

تبصره : ـ درته وویل شوه چه‌مسند حکم‌دی اومسند الیه‌هغه‌شی چه‌حکم پرکیږی او جمله له دې دواړو څخه جوړیږی ـ نوځکه فعل مسند الیه نشی کیدلا ی او اسم هم مسند او هم مسند الیه کیدلای شی .



تردې ځایه چه‌ومسندالیه او مسند اواسناد وپیژانده دادمعانی علم‌درې برخې‌وې ، اوس به‌ددې علم پنځه نوری برخی درته راشی چه‌داهم دمعنی په‌ترکیب اړه لری ۰

## ٤ برخه : دفعل متعلقات

دفعل متعلقات فاعل ، مفعول اودمتعلقاتو توابع : لغت ، توکید ، حال ، استثنا اونور دی چه‌دابحث هم‌په‌نحو اړه اری ، مگرکوم شی چه په علم معانی پکـار اودبلیغ کـلام دپاره لازم دی هغه متعلقاتو سره دفعل ترتیب دی ۰ چه دبلیغ کـلام ویونکی یالیکونکی اید ددې ترتیب مراعات وکړی ـ په‌عربی کښې خولمړی‌فعل بیافاعل بیا مفعول اووروسته‌دفعل ـ متعلقات اوتوابع راځی او کله کله دبعض موجباتو په اثر داترتیب هم سره اوړی ـ چه داهم بېل بحث دی ـ مگر په پښتو کښې دفعل او متعلقاتو ترتیب بل ډول دی ـ یعنی لمړی فاعل بیا فعل راځی لکه داچه زلمی خاندی او کله فعل تر مفعول لا هم وروسته راځی لکه‌دا جمله «زلمی پراس سپریږی!» بلکه‌داسی لاهم کیږی چه‌فعل ترخپلو ټولو متعلقاتو وروسته راشی مثلاً «میرویس په‌پښتنی همت پښتانه له مریتو به‌آزاد کړه!» داترتیبونه هریوپرخپل ځای‌درست دی‌او ویونکی یالیکونکی ئې‌باید مراعات‌وکړی ـمثلاً داجملې داسی باید ونه لیکل‌شی : خاندی زلمی ۲: زلمی سپریږی‌پرآس ۳ـ آزاد کړه پښتانه میرویس له‌مریتو به ـ

که‌څه‌هم‌یوډول‌معنابښندی‌مگرفصاحت نلری، ځکه‌چه‌فصیحی جملې‌باید‌پرنحوی‌قواعدوسمی‌وی .

د متعلقاتو حذف: کله کله دفعل ځینی متعلقات حذفیږی مثلاً دیرپیښیږی چه‌فعل دمفعول راوړوته ضرورت نلری، یعنی‌هغه مفعول‌چه‌دویونکی اواروېدونکی په ذهن کښې‌حاضروی اوحاجت راوړلوته ونه‌لری،مثلاً چاپوښتنه کړی‌وی‌چه« آس‌چاراووست؟» بل‌په‌جواب کښې‌ورته ووایی:ـ

«سدوراووست!» دلته‌نو حاجت دي‌ته‌پاته‌نشوچه ووايي: -«آس‌سدو راوشت!» او کله فاعل اومفعول دواړه حذفيږی مثلاً وي چيلوی خوړل-
مگردا نه‌راوړل به‌يادا‌ختصار دپاره‌وی اويابه‌د تعميم له‌جهته‌وی اويابه‌د ابهام دبيان‌دپاره‌وی-
ددې موضوع مفصل بحث هم په‌نحواړه‌لری. دلته‌نور ضرورت‌نشته.



## ٥ برخه: قصر

دقصرخخه مراد په يوشي پورې دبل شي تخصيص دی ، نوپه‌هرډول لارې چه‌وی لکه په دې جمله کښې دولاندې تخصيص په‌پر دل پورې چه‌ووايو«هيڅوک بيله پردله ولاړندې-!» په‌دې جمله کښې‌ولاړه مقصور او پردل‌مقصورعليه‌دی!
دقصرغايه:- دخبروتمکين اودمخاطب‌په ذهن کښې‌دهغو تقرردی.
دقصرويش: قصرپردوه‌قسمه ويشل کيږی ، يوقصردصفت پرموصوف‌دی اوبل قصر دموصوف پرصفت‌دی -لمړی-خودصفت اختصاص په‌يوه تاکلې موصوف پورې‌دی مگرپه داسی ډول چه بل موصوف ته تجاوزونه کړی (١) لکه‌چه ووايو:- «بی له‌خدايه بل‌څوک تل‌ژوندې‌نه‌پاتيږې!» اودوهم چه قصردصفت‌پرموصوف دی‌لکه‌چه ووايو:-«ژوندی‌بی‌خدايه بل‌څوک نه پاتيږی»
دقصرلارې:- دقصرلارې په‌عربی کښې‌شپږدی‌مگرپه‌پښتو کښې‌داځلورلارې تطبيقيږی:

١:-دنفی‌دلاری‌قصر، چه(نه‌اونشته)ئې‌توری دی مثلاً« زه‌ليکونکی‌يم شاعرنه‌يم!»
٢:داستثنادلارې:چه (بی-پرته-بيله) توری‌لری-مثلاً:«بی‌تابل‌څوک ستادژبی‌خدمت‌نه کوی!»
يا« پرته له تابل څوک‌ستا په‌درد نه خوری!» يا« بيله مونږنور ټول انسانان پر مخ تللی دی »
٣:-دعطف‌له‌لاری :چه‌په‌پښتو کښې‌د(خو، بلکه-يوازی-ليکن)توری په‌دغه‌ځای کښې راوړل کيږی
مثلاً ويل کيږی:«دپښتوخدمت‌خوستاسی‌زلمو وظيفه ده!» «ته‌شاعرنه‌يې»
بلکه ليکونکی يې! » « زه‌يوازی تللی‌وم ! » « ته‌بيده‌نه‌يې ليکن پروت يې ! »
٤ : - دجمع دمنفصل ضمير له‌لاری : لکه‌چه‌وايو : « دا کار پردول دوی کولای‌شی !»
قصر په منځ کښې راوړل : قصر دفعل او فاعل اونورو معمو لاتو تر منځ هم راتلی مثلا
ووايو : « هيڅوک رانغله خو پردل راغی ! » ياداچه « پردل يوازی راغیء ! »



## ٦ برخه : انشاء

انشا ايجاد ته وايی : - انشاء پردوه ډوله ده ، يوه هغه‌جمله ده چه ويونکی ديوشي غوښتنه

(١) شرالا علی سقر-٢١مخ

یکوی دا طلبیه‌بولی اوبله هغه‌جمله ده چه ویونکی د کوم‌شی غوښتنه نه‌یه‌ کو ی ـ بلکه نشتوالی اونیستی‌ئی داغیر طلبیه‌بولی نو په دی ترتیب انشا په‌څو شیانو پور ی اړه لری چه هغه داد ی :

امر ، نهی ، استفهام ، تمنی ، هیله ، لوړه ( قسم ) تعجب ، ندا څنګه چه انشائیه جملې په ډیرو شیانو پوری اړه لری لکه‌نودانشا ئیې‌جملې اغراض هم‌مختلف دی مثلاً امریوه صیغه ده چه‌په‌دی سره دمخاطب‌څخه دفعل‌انشاء غوښتنه کیږی اومرادئې‌ئی التماس، دعا ، تر ټنه دروندوالی یاسپکوالی یانورڅه وی دعایی امرلکه دیټ نیکه مناجات چه وایی :

دا وګړی ډیر کی خدایه　　　　لو یه خدایه لویه خدا یه

ددی معنانو دانه ده چه بیټ نیکه نو پرخدای امر کوی بلکه یوه دعاده اوغرض‌ئی ا لتجا اوالتماس دی لکه وایو چه « خدایه ماو بخښه ! »

داسی دعائیه امرونه‌په‌عربی کښې ډیردی « الهم اغفرلنا » یانور ۰۰۰ یادترټنې اوسپکوالی په‌ځای کښې چه‌وایو : « ورك شه ، مخ دی‌پیر ته که ! » یاددروند والی په ځای کښې مثلاً پښتنو میرویس خان ته‌وویل « راشه ، ته‌زمامشرشه ! » یانور داسی مثالونه هم‌داشان د ی دنهی غرضونه مګرله استفهام او پوښتنې څخه‌غرض‌دیومجهول امرخر ګندول‌دی چه‌دادې‌نفی‌او نهی اقرار تنبیه ، انکـار ، تعجب ، تعظیم ، تحقیر اونورو دپاره راځی مګردتمنا غرض دهیلې په‌تو ګه دیو شی غښتل دی نو که هغه‌شی ممکن او که‌محال‌وی مثلاً وویل‌شی « کـاشکی ددې ملت یوسړی هم ناپوه نه‌وای ! » اود هیلې یعنی‌ترجی‌غرض‌هم دامیدیه تو ګـه شی غوښتل د ی مګر دا مید جنبه ئی بایدقوي وې لکه داچه وویل شی: «ښائی‌چه داملت به‌ویوهیږي‌اوتر ابده به‌په ناپوهی کښې نه‌وي! » دقسم اوتعجب غرضونه‌خوښکـاره دي‌مګرقسم اوتعجبا کثرأدغیرطلبی جملې‌دپاره‌راځی. دندا غرض دعـا تأثر اونوردې چه‌هر یو پخپله قرینه پیژندل کیږي .

## ۷ برخه فصل اووصل

وصل‌دادي چه‌جملې یوپربل عطف‌سی ـ او فصل دادې چه عطف پرینبودل شی په‌پښتو کښې دعطف توري « او » دې .

دفصل ځا یونه : ـ فصل پنځه ځـایه لري ـ یوهغه‌دي‌چه‌دوې‌جملې بیخی سره نښتې وې یعنی کمال اتصال ولري اوداسی‌ښکاره‌شي‌چه‌دوهمه‌جمله دلمړی‌جملې تاکید یابیان دی‌مګرعطف‌غورځول شوی‌وی ، لکه‌عبدا لقـادرخټك‌چه وائی ،

باران اوریږي ، ښځوا کی‌ځاځی　　　　نسیم‌راوالوت‌سنبل‌پری ناځی
اسبـاب دعیش واړه موجوددی　　　　ساقی‌ته ګوروکه دی‌راپاځی

په‌پورته‌رباعی کښې‌ښځوا کی پرباران عاطف اودهغه‌بیان‌دی. اوفصل‌هم‌راځلی یعنی‌دعطف‌توری نشته یاوایو : هغه‌وړو کی سورسپین ، چاغ شلنده دی‌یانور ۰۰۰

دوهم ځای: بل هغه ځای دی چه پر لیری والی یعنی کمال انقطاع وی چه دوی مختلفی جملی یعنی یوه انشائیه او بله خبرئیه سره راغلی او دوهمه د لمړی بیان یا تا کیدوی مگر د عطف توری له منځه غورځیدلی وی لکه چه دا جمله : « ته ورځه زه یا تېږم ! » چه لمړی جمله انشائیه او دهمه خبریه ده او د عطف توری هم نسته .

دریم ځای: د کمال اتصال د شبه په ځای کښې، یعنی متصل وی مگر انز، چه دوهمه جمله تقریباً د لمړی جملی ځواب شانته وی لکه دا متل .

«مه داسی خوږ سه چه څوك د وخوری ، مه داسی تریخ سه چه څوك دی وغورځوی»

څلورم : د کمال انقطاع د شبهی ځای چه تر یوی جملی د مخه دوی جملی راسی او د دریمی جملی عطف پر یوی د مخنی جملی درست وی او پر بلی نه ـ مثلاً :

« زلمی په تن روغ ، په زړه ناروغ ، په ژړا ژاړی!» په ژړا ژاړی جمله یوازی د په زړه ناروغ د جملی بیان راغلی دی د هغی بلی جملی سره نه لگیږی او فصل هم راغلی یعنی د عطف د توری ځای خالی دی .

پنځم :ـ هغه ځای چه دوی کاملی جملی سره راسی دوهمه پر لمړی عطف مگر معناً دوهمه جمله له لمړی سره مخالفه وی او معناً مناسبت ور سره و نلری لکه دا متل : « چا په کلی کښې نه پر ښود ، ده وېل آس می د ملك کره وتړه ! »

دوصل ځایونه : وصل دوه ځایه لری ، یو هغه ځای دی چه دوی جملې په خبریه او انشائیه کښې سره مختلفې وی او عطف ئې «او» سره راسی لکه چه وایو: «احمد دی کښینی اوزه دریږم!» دوهم هغه ځای دی چه دواړی جملې په انشائیه او خبرئیه کی سره برابروی لکه دا متل: «ته گوری و ماته اوزه گورم وتاته» کار تر منځ شو یا ته ! چه دواړی خبرئیې جملې راغلی دی .

## ۸ برخه : ایجاز ، اطناب ، مساوات

ایجاز اختصار او اطناب اوږدوالی او مساوات برا بروالی ته وایی ، او د معانی په اصطلاح ایجاز هغه دی چه لوی مقصد په ډیر لنډ عبارت اداشی او اطناب هغه دی چه لنډ مقصد په اوږد عبارت اداشی او مساوات هغه دی چه مقصد او عبارت سره برا بروی . مگر دا دلنډ والی یا اوږدوالی یا برابروالی تاکل او تعین فقط د منځنیو او متوسطو خلکو په عرف اړه لری چه ددوی کلام نه بلاغت ته رسیږی او نه مهاهت او بدو یت ته (۱) یعنی که مقصد په داسی عبارت اداشی چه متوسطی طبقی خلکو تر عبارت په لنډه عبارت سره اداشی ایجاز دی او که د متوسطو خلکو تر عبارت په اوږده عبارت را اوډه شی اطناب دی ـ یا په بل عبارت که لفظ له مفهوم سره مساوی وی مساوات دی او که تر مفهوم ډیروی اطناب او که لنده وی ایجاز باله کیږی

۱ مختصر المعانی ـ ۲۷۸ مخ .

ايجاز : مثلا يوسړی تهچه ډېر درد رسیدلی وی یامثلا مینوی نووایی :«اوف ـ اوه !»
پهدي يوه لفظ سره دده ټول دردونه اروپهدونکی ته متصور کېږی .

دايجاز قسمونه :

ايجاز پردوه ډوله دی :

يوايجاز بېله حذفه : اوبل سرهله حذفه :

ايجاز بېله حذفه هغهدی چه دجملی څخه کومشی حذف شوی نهوی لکهیوه پښتانه تهچه
څوك ووایی «بی پښتو سړیيې !» دا که څههم یوه جملهده مگر دپښتنو پهنزد ئې مفهوم اومعنا
خورا لویه ده، ځکهچه دپښتنو پهاصطلاح دپښتو نفی داخلاق ، انسانیت ، شرافت ، غیرت حتی
داسلامیت نفی ښکاریږی.اوبل ایجازسره لهحذفهدی مثلاً پهاصطلاح کښې وایی :« ټول کلی
خبردی ـ ! یا: د کلی څخه پوښتنهوکړه!» یعنی دکلی دخلکو څخه چه دخلکو کلمه حذف
شوي ده .

اطناب: مثلاً دېردل څخه پوښتنه وشی : ستانوم څهدی؟ دی ووایی :«زمانوم پردل دی ،
دپلار نوممی کوندل ، پهخټه محمدزییم ، پهنوی ښار کښې اوسم ! »

داطناب قسمونه: داطناب قسمونه ډېردی چه مشهوره ئې دادی :

۱: ترعام وروسته خاصراوړل ـ۲: ترخاص وروسته عام راوړل ـ۳ : ترابهاموروسته ایضاح
راوړل ـ٤: تکریر ـ٥: اعتراض ـ٦: ایغال ـ۷: توشیع ـ۸: تذییل ـ۹: تتمیم یانور ...

ترعام وروسته خاص راوړل : لکه چه يو څاتـه وو ایو : ټول کتابونه درسرهراوړه
ترخاص ورو سته عام راوړل :لکه چه ووایو:زما کتاباونور ټول کتابونه درسره راوړه .
یایه دعا کی چه وایو : خدایه ماوبخښې زما مور اوپلار اوټول مسلمانان و بخښې !

ترابهام وروسته ایضاح لکه چه وویل شی : زهدرې ورونهلرم ، مشرقی زلمی ، کشر می
سدو ، همزولی می خالو دی .

تکریر : یعنی یوشی دوه واره یاډېر واره راوړل دی مثلاً :

عبدالقادرخان وایی :

چه ئې تللم په خندا خندا دیدن ته
اوس ئې درو هم په ژړا ژړا مزارته

اعتراض :ـ یعنی په کلام کښې یوه معترضهجمله راوړلدیعلی لکهخانچه وائی :ـ
اوس میخه زده « باقی دا» چه لهڅه راغی ،
ځی به چیر ته سو ریـا پلی ځمـا روح ـ
مقصد دباقی دا کلمه ده .

ایغال : دخبرې په پای کښې بله خبره زیاتول دی۔ یعنې د یوشي په مبالغه کښې غلو کول دي
مثلاً دنجلۍ مخ سپين ځلیږي ، ته وایې دځلور لسم سپوږمۍ ده ! »

توشیع : توشیع دا بولي چه کلام په تثنیه سره تمام اودوومفردو سره ئې تفسیر وشي ځکه چه
تثنیه په پښتو کښې نشته نوتردې تیر یږو ۰

تذییل : ـ ذیل لمن بولي یعني یوه جمله دبلې جملې په لمن پورې دتاکید د پاره نښلول دي لکه
دا مثل :

کـه تا ویل چه زه یم اوماویل چه زه یم نه به ته ئې نه به زه یم
که تا ویل چه ته ئې اوما ویل چه ته ئې هم به ته یې هم به زه یم

تتمیم : ـ د کلام په پای کښې یوه کلمه د کلام دښه والي د پاره زیاتولو ته تتمیم وایي که هغه
کلمه حذف شي د کلام خوندځي لکه دخوشحال په لاندې بیت کښې د« کنه » کلمه چه وایي :

ولې راته وایې چه په ښکلیو نظر مکړه
سترګې چه پیدا دي خو دیدار لره کنه

مساوات : ـ دمساوات مثال لکه څوك چه له چاڅخه پوښتنه و کړي :
( ته روغ يې ؟ ) هغه وایي : ( هو ، روغ يم ! )

* * *

## ۲ : د معنا صفتونه

دمخه مو وویل چه بلاغة له دروشیانو استفاده کوي دمعنا له ترکیبه او دمعنا له صفتونو اودمعنا
له اسالیبو څخه دمعنا ترکیب خومفصل ذکر شو اوس به دمعنا صفتونو او وروسته د معنا اسالیب
بیان کړو :

دمعنا صفتونه چه هره بلیغه معنا باید په هغو سره متصفه وي دري دي اول دادی چه بلیغه معنا
باید واضحه وي یعني آسانه وي اوپیله کوم اشکال اوعمیق فکره په ذهن کښې ځای نیسي چه په
پښتو کښې درحمان بابا دیوان تر هر دیوان دمخه ددې مزیت لرونکی دی او تقریباً ټولی بدلی
ئې په دې صفت سره موصوفي دي ځکه نودهر پښتانه اوهري پښتنې په زړه کښې ئې ځای نیولی دی
مثلاً په څه سادګۍ دخپلو اوښکو بې اثره کیدل بیانوي :

غرونه غرونه خوب په څاڅکي او بو دروي
یار په سند زما د اوښو بید ارنشه

یا بل ځای دځان سیځل دا سې بیانوي :

ستا له غمه ځان زړه در حمان سوځي
لکه شمعه په زیارت د شهیدانو

دو هم صفت دا دی چه بلیغه معنا باید ټینګه او مطابق له واقع سره وي مثلاً خوشحالخان

دخولې اخیستلو واقعه داسې څرګندوی :

زه خوشحال کمزوری نه یم چه به دار کړم    په ښکـاره ناري وهم چه خوله ئې را کړه

دریم صفت دادی چه بلیغه معنا ملائمه وي یعنی دحال دمقتضا سره سمه وي مثلاً عبدالقادر خان دمستۍ په حال کښې چه ساغر ئې له لاسه لویدلې اومات شوی دی په څه منا سبو اودحال له مقتضا سره سمو الفاظو عذر غواړ ی :

له مستۍ مې ښیښه پریوته له لاسه
ساقي قهر راته مکوه څوانی د ه



## ۳ : دمعنا اسالیب

دمعنا اسالیب دادی چه عقل ئې په مختلفو صورتو درك کوی اودارو بدونـکی پر فهم ئې عارضوی اوداسالیب ډیر دی چه مشهوره ئې دادی :

۱ : مبتکره معنی : یعنی یوه معنی په نوی صورت راوړل چه نسبتاً دمخه چا په هغه معنانه وی راوړې مثلاً عبدالقادر وا یی :

سرې سرې اوښی دی پر مخ عبدالقادره
وخپـل یارتـه دیاقـوتـو مـهمـانـی ده

ومحبوب ته دسرو اوښکو مهمانی ابتـکـار دی چه دعبدالقادر خان په برخه شوی د ی .

یا په رثا کښې دخوشحال خان ابتکار چه دخپل څوی «نظام» په وېرنه کښې ئې ښکـاره کړی دی چه وایی :

کشکې څوان دیښتانه په ننګ کښې مړوای
نه چه ګـور لره روان شو له تـلـتـکه

وګوری : په پورته بیت کښې خوشحال خان دزوی له مرګه متأثر نه دی ، بلکه په دې متأثر دی چه زوی ئې ولې په تلتك کښې مړ شو ولی دقام پر ننـګه مړ نه شو .

۲ : دقیقه معنا : داهغه معناده چه درك ئې څه قدر ډیر فکر غواړ ی او د ویو نـکی پر دقت دلالت کوی ، چه په پښتو کښې د کاظم خان شیدا ټول دیوان دااسلوب لری اوتقریباً ټولی بدلی ئې ددې معنا لرونـکی دی مثلاً خپله استغنا اواعتماد بنفس دا سې ستایی :

دآفتاب په کمند نه خیژم آسمان ته
نه زدم بار لکه شبنم پردوش د ګـلو

۳ : ـ نرمه معنا : داهغه ده چه دیوې لطیفی معنا تعبیر په دا سې سلیسو الفاظو وشی چه زړه په هیجان راولی اودارو بدونـکی روح خوشه شی لکه دعبد القادر دابیت :

هرسحر ستر گي د گل په اوښکو ډکي    په دې باغ کښې بې ژړ لو خندا نشته

یارحمان بابا چه وایي :

دابا ران نه دی چه اوری له آسمانه

دمر غانو په رحمان باندی ژړا شوه

٤ : ـ جامعه معنا : جامعه معناهغه ده چه په لږوالفاظو کښې ډیره معنا ځای کړی ، مثلاً خوشحال خان دحیرت مقام چه دفلسفې پای اونتیجه ده اوټول فلاسفه دې ځای ته رسیدلی دی په لاندی دووبیتو کښې څنگه ښه لنډ بیانوی :

حیران یم نه پوهیږم چه زه څه یم څه به شم    له کومه یم راغلی بیابه کوم لوری ته ځم

جهان یو کټوری شو، زه په مثل دمېږی یم    حیران یکښې جاروزم ،لاس وپښې یکښې وهم

٥ : متینه معنا : چه دویونکی متانت ځنی ښکاریږی اوپه اورېدونکی کښې عزم اواراده اومتانت ټینگوی مثلا خوشحال خان دهمت په لار کښې وایی :

که آسمان دی دزمری په خوله کښې ور کا    دزمری په خوله کښې مه پریږ ده همت

اودطلب په لاره کښې داسی وایی :

که غوټې پسی وهی په لاس به درشی    چاوې داچه په دریاب کښې گوهر نشته

یادا :

تر مطلو به پوری شرط درسیدو دی    که تما مه لار په وینو شی آلوده

٦ : ټینگه لوړه معنا : چه دویونکی شهامت اومړانه اوحماسی روح ځنی څر گند یږی خوشحال خان چه دپښتنو دروح نماینده دی وایی :

لا په خوب کښې په لرزه پریوځی له کټه    چه دچا تر غوږ دماد توری شرنگ دی

لا تر اوسه ئې ما غزه په قرار نه دی    چا چه ما سره وهلی سر په سنگ دی

یانوری داسی معناوی چه دمتکلم اوځای اومخاطب اوخبرو په حالاتو اړه لری اوددې حالاتو له پیژندلو څخه مقصد دادی چه درثا پرځای حماسه اودحماسه پرځای عشقي یانوری معناوې رانه وړه شي او هم دا معناوی کوم تما کلی مأخذ نه لری فقط دادیب او شاعر په استعداد او ذکاوت اومعلوماتو ربط لری .

ژبنۍ څېړنه :

# په پښتو کښې د ځینو گرامري

## اصلاحاتو بدلونه

ښاغلی صدیق الله رښتین :

داخبره چه دیوې ژبې د گرامر په شاوخوا کښې څېړنه اوپلټنه څومره ضروري شی دی ؛ دزیاتې څېړنې محتاجه نه بولم ولې چه ددې خبرې اهمیت تر ډېرې اندازې څرگند او هر چاته ښکاره دی نوځکه سمدلاسه په مطلب لاس پورې کوم اوغواړم چه په پروسني وعده سنز کال پیادسالنامې لهلوستو نکو سره یوه شېبه مشغول اوخبرې اترې و کړم گوندې له دې خبرو څخه د گرامري اصطلاحاتو پهشاو خوا کښې څهرڼا پیداشي اویوه ډوره لار منځ ته راووځي ·

تمهید : که چېرې مونږ دهرې ژبې په لغاتو او کلماتو کښې غور و کړو ، یعنې دفقهاللغې په نظر ورته و گورو، دفیلولوژۍ په اساس ئې کښته پورته کړو اودلغاتو په اصل اونیلو کښې ئې فکر و کړو؛ نودابه راته معلومه شي چه زیاتره لغات دیو تناسب له مخه ایښوول شوي دي اویو علت او یوه نکته پکښې سرې پیدا کولی شي، په تېره په آریائي ژبو کښې خودا صفت زیات اوډېر دی ·

مثلاً (گرېوان) چه گروه دغاړې اوکې تهوایي او(وان) دمحافظت کلمه ده، نوپه دې تناسب د کمیس غاړې ته گرېوان ویل کیږي ، ځکه چه د گروې ساتنه کوي یاغړوندې چه له غاړ ې اووندڅخه جوړ شوی دی(وند) په سانسکریت کښې (بند) تهوایي ، معنې داشوه چه دغاړې بند· په دې ډول نورهم ډېر مثالونه موجود دي لکه ( پښندې= دپښې وند) پېزوان= پوز ه ـ وان)، داډول لغات پر دوه ډوله دي ، یومرکب د ی اوبل بسیط ، مرکب لغات او کلمات خو ا کثر یو مناسبت اویوه نکته لري لیکن په بسیطو او مفردو لغاتو کښې ارتجالي لغا ت هم پېښیږي، ارتجالي هغه دي چه دخپلې معنې سره څه تناسب ونه لري لکه سړی ، لرگی چه ظاهراً په دې نومو کښې کومه توجیه نشته ، چه سړي تهولې سړی وایي او لرگي تهولې لرگی وایي؟ دعربو دا مشهوره خبره «چه اسما معلول په علت نهدی » ددې قسم نوموسر ه اړخ لگوي اوپه داسې نومو کښې رښتیا والی پیدا کوي، مگر دا یوعمومي قانون نشي کېدای ، ځکهچه ډېر نومونه اوخاص بیامرکب نومونه په آریایي ژبو کښې خامخا یو اصل اونیله لري اودیو تناسب له مخه ایښوول شوي وي ·

اصل خودادی چه باید په هر ه کلمه اوهر لفظ کښې یومعنوي تناسب مو جود وي ، یعنې

یولفظ او کلمه باید داسې وي چه له آواز او آهنګ څخه ئې معنی معلومه شي لکه چه په ځینو ژبو کښې ددې اصل مراعات ترډېره حده شته. په پښتو کښې‌هم مونږ ځینې د غسې کلمې پیدا کولی‌شو چه‌هغه دطبیعی اواصلی آوازونو څخه جوړې شوې‌دي لکه (چوغکه ، چڼچڼه) .

چوغ اوچڼ دمرغیو داصلی آوازونو نوم‌دی اوله‌دغو آوازو څخه حکایه کوی ، نوپه دغه اعتبار په اول کښې د(که) په زیاتوالی اوپه دوهم کښې دصوت په تکرار سره مستقل نومو نه ځنې جوړ شوې دي .

دارنګه چڼچڼی- ټکټکی- ټپټپی - بغبغی (هارن) هم‌دغه ډول نومونه‌دي چه‌له طبیعی آوازونو یعنی (چڼ - ټك -ټپ-بغ) څخه‌ماخذدی مګرلکه‌چه‌دمخه‌اشاره‌وشوه؛ داخبره هم‌ثابته‌ده‌چه‌ددنیا په هره ژبه کښې بې تناسبه نومونه هم‌شته چه دلفظ اومعنی ترمنځ ئې څه مناسبت نه وي ، مثلاً په فارسی کښې د(چوب اودرخت) لفظونه دخپلې معنی سره څه‌مناسبت نه‌لري یامثلا په عربی کښې (شجر ، حجر) او داسې نور .

وایې (۱) چه‌په سانسکریت کښې چه‌یوه ډېره علمی ژبه‌ده هم دانقص موجود دی چه دلفظ اومعنی ترمنځ دمناسبت مراعات پکښې نه‌دی شوی - نو سره ددې‌هم هرکله چه دلفظ اومعنی په‌منځ کښې‌دمناسبت لټولو اساس یوښه او غوره اساس‌دی اودامناسبت په مرکبو الفاظو کښې ډېردی ، حتی‌چه دپښتو په‌مصدرونو کښې هم‌لیدل کیږی ، په‌دې لحاظ ښایی چه مونږ تروسه پورې په‌نومونو کښې مناسبت اوارتباط ته‌اهمیت ورکړو اودا‌په اساس چه دلغت دپو هېدو سره هم ډېر کومك کوي ؛ ومنو . کوم وخت چه سړی ته دیولغت اصل او ریشه معلومه شي اوپه معنی او تناسب ئې پوه شي ؛ نوهغه وخت د سړی زړه ته پوره لوېږی اوپه ذهن کښې ئې‌ښه ننوځي . یووخت چه ماپه پښتو کښې (ترله) نوم و اورېده نوځکه چه خپله محاوره مې‌نه‌وه ؛ عجیبه بې‌راته ښکاره کېده اوښه پرې نه پوهېدم ، بیایوه ورځ ناڅاپه خیال ته راغله‌چه داخود (تره دلور) څخه مخفف شوی لفظ دی، نوپس له‌هغه رابانده دانوم خوږ ولګېد اوزړه ته‌می پرېووت ، دپښتو په افعالو اومصادرو کښې‌هم دغسې نومونه ښایسته ډېردی چه‌دلته‌ئې یو څومثالونه راوړو .

۱- تلل(وزن کردن) له‌تلې (ترازو) څخه‌جوړ شوی‌دی. یعنی هغه کار چه دتلې په واسطه کیږی هغه ته تلل وایی .

۲- وتل- کوم وخت به‌یوسړی په‌یو (وت = شګاف) وتلی وی ، نودغه فعل ته‌دلام په‌لګولو وتل وو‌ایه‌شو ، چه‌اوس عام‌دی اوله هرځای څخه خارجېدوته وتل وایی ،

۳- نغوږل : دغوږله کلمې څخه جوړ‌شوی دی، د غوږ کار اوفعل ته‌چه‌اورېدل دی نغوږل ویل کیږی .

---

(۱) مقدمهٔ فرهنګ نظام جلد ۳

٤- نغرل : لهغرۍ څخه چهسړي يوشی تېر کړي ديته نغرل وايي .
٥- چنيدل ! دچغ لهصوت څخه جوړ دي او دمرغيو چغ چغ کول ، چنيدل بولي .
٦- کسل : د کسي فعل او کارته چهليدل دي؛ کسل وايي اومناسبت ئې ښکاره دی .
٧- غپل : لهطبيعي صوت يعنی غپ‌څخه جوړدي ځکه چهدغپلو پهوخت کښې دغپ‌غپ آواز اوريدل کيږي .

پهدې ډول پهپښتو کښې مرکب مصدرونه خوتول ديوتناسب لهمخه جوړشوي او وضع شوي دي لکه : تړرول - سپينول - پخلاکول - پورته کول‌او داسې نور .

مګر بالمقابل ددغو مثالو پهفارسي معنی ګانو کښې هيڅ مناسبت نشته لکه: برآمدن، شنيدن ، ديدن البته ءوءو کردن چهدغپل معنی‌ده پهدغه اساس برابر دي .

لهدي کبله په پښتو کښې چه يوه آريائی ژبهده دلفظ اومعنی په منځ کښې د مناسبت ساتلو خيال‌يو ضروري شی‌دي خصوصاً پهنويو لغاتو کښې خوبی لهدې څخه بله لارنشته ځکه چه هسې وچ‌پهوچه بی‌علت او تناسبه يوې معناته لفظ ايښوول داسې مثال‌لري چه سړي و هلوته « پهل » وواي .

هو ! زمونږ اصلي‌بحث دلته‌اوس په ګرامري اصطلاحاتو کښې‌دي دنورونومونو په باب کښې بهبيا کتلی‌شي، پهصرف‌اونحو او ګرامري‌نومونو کښې خودې‌شی‌ته سخت‌ضرورت‌دی ځکه چهدصرف نحو قاعدې اوقوانين دصرفيانو په اصطلاح ټول ( نکات بعدالوقوع ) دي‌يعنی يوه کلمه يايوه جمله وړاندې په ژبه کښې په خپل شکل استعمال شوي وي ؛ صرفيان هغولهنوم پيدا کوي او قاعده ورلهجوړوي، نوداقسم صرفي‌نومونه او ګرامري‌اصطلاحات خامخا اوهرومرو يومنکته، يوه وجه اوتناسب غواړي. بل ګرامري اصطلاحات دومره زاړه اوپخوانی اسماهم نه دي چه ګوندې دژبې ديداښت سرهدې‌سم پيداشوي وي بلکهدژبې صرف‌نحو او ګرامري نومونه ټول‌نوي او جديد شيان‌دي چهوروسته‌خلقو ايښی‌دی پهدې اعتبار مونږ کولی‌شو چه پهدې اصطلاحاتو کښې هغهچه موزون‌نهوي اودخپلی معنی‌سره ښه تناسب نهلري واړوو، اوبرځای‌ئې نورنومونه کيږدو .

نودادي ددې تمهيدنه وروسته زهپهپښتو کښې دغسي بی‌تناسبه اصطلاحات بيانول او پرځای ئې نورنومونه راوړل غواړم. کهچيري‌پښتانه فاضلان پهدې لارکښې دفکر اوغور کولو آرزومن وي نودوی پهورته متوجه شي اوزمادفکر په طرفداري اويانه طرفداري کښې بهڅه ووايي .

دالفبا نومونه : هغهساده آوازونه چهله خولی څخه وځي دهغو تحريري نقل اوشکل ته الفبا ياحروف وايي .

په پښتو کښې د حروفو نومونه اکثرېي تناسبه دي اوغالباً بی‌له څهفکره دنورو ژبو په تقليد اخستل شوي دي مثلاً : (الف ، جيم ، دال ، سين ، شين ، غين ، کاف ، لام ، ميم نون ، واو )دپښتو پهپتي ياالفبي کښې‌دانومونه ښهاوموزون نهمعلوميږي، ځکه چه د دغوحروفو

آوازونه اواشکال ساده اوبسیط دی اونومونه ئې ساده اوبسیط نه دی بلکه مرکب دی، څه معنی؟ حرف دې یووی ، غږدې یووی، یعنی شکل او آواز دې ساده وی اوپه نامه کښې دې ئې دری حرفه اودری غږه سره یوځای شوی وی لکه ( الف ، جیم ، تر آخره ) په تعلیمی لحاظ هم دانومونه ډېره سختی پیښوی. لام اوفی ته به لاهلك نه وی رسیدلی اوپه الف کښې به ئې په خوله راځی. داوجه ده چه هلکانو ته ( بې، تې ) آسان اوالف اوجیم ورته گران وی. داچه په پارسی اوعربی کښې دانومونه څنگه عام شوی دی؟ زه دې سره کار نه لرم اونه دبلی ژبی مسئولیت او جواب په غاړه اخلم تر او سه تش په تقلید بی له دې چه پښتو ته کمه فایده یا کمه آسانتیا ورسوی ؛ اخستل شوی او قبول شوې دی، له دې کبله ښائې چه له دې بی فایدی تقلیدنه تیرشو اولکه نورو ژبوغوندی دشکلونو اوآوازونو پشان ساده نومونه هم غوره کړو، عجیبه لا داده چه په تولو حروفو کښې پوره پیر وی هم نه ده شوی، مثلاً دانومونه ( بې ، تې، خې ، رې ، زې ، هې ، یې ) دعربی پرډول نه وایو، که نه - بایدچه داموهم لکه دالف، جیم پشان ( با ، تا، خا ، را ، زا، ها ، یا ) ویلی، نوداچه په ځینو حروفو کښې ئې پیروی کوو اوپه ځینو کښې ئې نه کوو ، بی دلیله غوندی خبره ده .

له دې سببه پکاردی چه د پښتو دحروفو یعنی الفبا نومونه درست په یو شان شی، بیا په یووالی کښې ئې دساده والی نظریه غوره اوفایده منه ده. نو پر دې اساس باید چه پر (الف ، جیم ، سین شین ، غین ، لام ، میم ، نون ، واو ) هم د ( بې ، تې ) پشان نومونه کیږدو او ( جې ، سې شې ، غې ، لې ، مې ، نې ، وې ) ئې وبو لو .

اگرچه په دې مثالونو کښې هم ورسره (ی) راځی مگر هغه د کسری پر ځای لیکل کیږی او کوم مستقل حرف نه دی .

بل داسی هم کیدای شی چه تول حروف په زور کی یازورسره ووایو اوپر (هه ) ئې ولیکو لکه : ( آ ، به ، په ، ته ، جه ، خه ، چه ، ده ، زه ، ره ، سه ، شه ، غه ، که ، له ، نه وه ، هه ، یه )دپښتو مخصوص حروف هم پر دغه ډول لیکلای شو لکه : ټه ، څه ، ځه ، ډه ، ړه ژه ، ښه ، ڼه )

مگر ددې دوهم صورت څخه اول صورت ښه دی ځکه چه هلته نیم حروف الدول غواړ ی اودلته تول، او کم لفظی غوره والی هم پری نه لری .

<u>دالفبا ترتیب</u> : دالفبا ترتیب هم په پښتو کښې سم اوصحیح نه دی ځکه چه په سانسکریت اواوستا کښې چه دوه مهمی آریایی زړې ژبی دی دالفبا ترتیب دمخرجونو اوو توځوپه اعتبار دی .

مثلاً (۱) لمړی حلقی حروف بیالسانی اوبیا پسی شفوی دی لکه : ( ا ، هه ، غ ، ج ، چ د ، ت ، ب ، م ) اوپه پښتو کښې دالفبا موجوده ترتیب دعربی دیوه ترتیب تابع دی چه ابتثی ترتیب ورته وایی لکه : ا ، ب ، ت ، ث ، ج ، خ ، د، ر ، تر آخره ) د دې ترتیب دشهرت

(۱) فرهنگ نظام .

اوعامو الى وجه دحروفو اشکال دى ( ۱ ) مګر علماو نور ترتيبونه هم قبول کړى دى، خو په پښتو کښې داترتيب چه بى دعربى لهتقليد څخه بلهوجه نه لرى موزون او غوره نه معلوميږى .

هر کله چه پښتو يوه آريايى ژبه ده، نو بايد چه دالفبا ترتيب ئې هم هماغسى دمخارجو په اعتبار راشى. دمخارجو پهاعتبار دحروفو ترتيب اورون يو طبيعى اوفطرى ترتيب دى، زړه ته هم دا ترتيب ښه پر يوځى، اوهر څه چه ابتدې سلسله ده نو په دې سرى نشى پو هيداى چه په څه وجه ئې الف له حلقى يې لهشفوى اوت له لسانى حروفو څخه را اخستى او په يو بل پسى ئې ترتيب کړى دى په هر صورت غرض داد ى چه له دغه موجوده ترتيب څخه دمخرجونو په لحاظ ترتيب غوره او طبيعى دى اودعربو ځينو پوهانو هم دغسى کړى دى ، نو بايد چه د پښتو الفبا ترتيب په دې ډول راشى چه اول حلقى بيالسانى او بيا شفوى حروف وى يا داسى وشى چه د شونډو له طرفه ونيول شى ، دا صورت ئې هم بدنه دى لکه ( و ، ب ، م ، د ، ر ، )

معروف او مجهول واو: دې نوموته هم چه سړى څه قدر متوجه او ځير شى نو ښځى بى تناسبه معلوميږى. دا نومونه په فارسى کښې هم اخستل شوى دى او تعريف ئې پر دې ډول دى .

۱ ـ هغه واو چه وړاندى حرف ئې خفيفه ضمه ولرى اونرم وويلى شى ؛ مجهول واودى لکه په پښتو کښې د ( يوځ او تود )واو ، او په فارسى کښې د (زور) واو .

۲ ـ هغه واو چه ترمخه حرف ئې خالصه ضمه ولرى اوليز سخت وويلى شى ، معروف واو بلل کيږى لکه په پښتو کښې د( ګور اولور ) د کلمو واوونه ، او په فارسى کښې د (ضرور) واو .

اوس و ګورىء چه دمعروف او مجهول دنومو اوددغو معنى ګانو ترمنځ هيڅ تناسب نشته ، داسى نه ده چه ګوندى ديو واو معنى ياآواز معلوم دى اودبل هغه مجهول دى بلکه ددواړو آوازونه معلوم او معروف دى.

ډاکټر عبدالحق ( دهند دانجمن ترقى اردوسکر ترى ) په خپل کتاب قواعد اردو کښې ليکلى دى : « چه دمجهول واو آواز په عربى کښې نه راځى اوعربو ته معلوم نه دى نو ځکه دوى پرې دمجهول نوم ايښى دى مګر په اردو کښې دا آواز مجهول او نامعلوم نه دى ، له دې سببه دا نوم په اردو کښې موزون نه معلوميږى » .

په پښتو کښې هم بعينه دغه خبره ده ولى چه دلته هم دمجهول واو آواز څه مجهوليت او نامعلوميت نه لرى ، دواړه قسمه واوونه معلوم اوڅرګند دى ، نو د(تور ) واو ته مجهول اود (ګور) واو ته معروف ويل محض يو بى معنى تقليد دى . له دې کبله ښايى چه په پښتو کښې مجهول واو ته خفى ياخفيف اومعروف واوته جلى اوياثقيل واوو وايو ، ددې نومو مناسب ښکاره دى ولى چه په خپله دواو له تلفظ اوآواز څخه معلوميږى . بلداچه(۲) پهاوستا اوسانسکريت کښې هم خفيف اوشديد

(۱) محمودعلى ماهر په علم الحروف کښې ليکلى دى چه دا طرز دليکودسهولت اودشاګردانو دپاره ابن مقله کاتب راويستى دى اوهم شکل حروف ئې سره نږدى نږدى ترتيب کړى دى ص ۵۰

(۲) مقدمهٔ فرهنګ نظام جلد ٤

واوونه موجوددو ، چه‌اول‌ته‌ئې اوس‌خلق مجهول اودوهم ته‌ئې معروف واووایی ، نومعلومه‌شوه چه‌دخفیف اوشدید نومونه ددغووا وونو دپاره طبیعی‌اوموزون نومونه دی‌اوباید په پښتو کښې هم د سانسکریت اواوستا په‌اساس قبول اومنل شی.

**مجهوله اومعروفه (ی)** : دمجهولی اومعروفی (ی) نومونه‌هم لکه‌دمجهول اومعروف واوپشان مناسب او موزون نه‌دی ، کوم دلیل اوعلت چه هلته وویل‌شو هغه دلته هم ویل کیږی څه رنګه چه‌دخفی واوآواز په‌پښتو کښې مجهول اونامعلوم نه‌دی ، دغسی دخفی(ی) آوازهم څه نامعلوم والی‌نه‌لری ، نوپه‌دې اعتبار دانومونه‌بهتر نه‌ښکاری اوباید چه‌خفی اوجلی (ی) ، ورته‌وویله‌شی یاورته خفیفه اوشدیده(ی)ووایو . هغه(ی) چه‌اول حرف‌ئې خفیفه کسر لری او نرمه ویله کیږی خفی(ی)ده اوهغه چه‌وړاندی حرف‌ئې خالصه کسره لری اوسخته ویله‌شی جلی(ی) بلل کیږی. خفی (ی) لکه‌په (هیراوتیر) کښې اوجلی(ی) لکه‌په( ویراوښادی ) کښې .

په‌سانسکریت (۱) اواوستا کښې هم‌ای خفیف اوای‌شدید راغلی دی چه‌اول ئې هم‌داخفی (ی) اودوهم‌ئې هم‌دا جلی (ی) ګڼل کیږی .

**ثقیله‌ی** : دپښتو په ګرامری اصطلاحاتو کښې دانوم‌هم‌اوس مشهور شوی دی اوهغه (ی)ته ویل کیږی چه‌وړاندی حرف‌ئې زور کی واری لکه ( چوکۍ ، خولۍ ) مګر دانوم هم پوره تناسب نه‌لری ، ځکه چه‌ثقالت په‌داسی ځای کښې راځی چه‌یو آواز دوچند شی ، یاآواز له‌زور ور کړی‌شی اوپه‌دې ځای کښې دایوهم نشته ، بلکه په چوکۍ اوخولۍ کښې د کاف اولام حرکت نرم اوپه کلار ویل کیږی ، له‌دې کبله ښایی چه‌دې قسم‌ته مایله (ی) ووایو ، ولی چه ماقبل حرف‌ئې یومایل حرکت یعنی زور کی لری .

**ملفوظه اوغیرملفوظه ه** : په‌ځینو پښتو ګرامرونو کښې هغه (ه) چه وړاندی حرف ئې زور ولری ملفوظه او هغه چه ماقبل حرف ئې زور کی لری غیر ملفوظه بلل شوی دی ، لکه په (پنه اوپسه ) کښې چه‌اولی ته‌ملفوظه اودوهمی‌ته غیرملفوظه وایی . دانومونه هم غوره اوموزون نه‌ایسی ، ځکه‌چه دغه هی ګانی په‌اصل کښې دواړه غیر ملفوظی دی او تلفظ پری نه کیږی . ددې هی ګانو تقسیم اوبیلونه له‌ماقبل حرف‌نه معلومیږی ، هغه‌چه ما قبل حرف ئې مفتوح وی جلی‌ه ده لکه په( پته اوتخته ) کښې او هغه چه ما قبل حرف ئې زور کی در اود خفی ( ه ) بلل کیږی لکه په (زده اوتره ) کښې نوپردې اساس ښائی چه لمړی ته جلی او دوهمی ته‌خفی ( ه ) ووایو .

**حروف علت** : دا اصطلاح په‌پښتو کښې له‌عربی‌څخه اخستل[1]شوی‌ده مګر پوره نه تطبیقیږی که علت دسبب په‌معنی واخلو نوبیا خوددې معنی او د علت دحروفو ترمنځ ډیرلیری والی دی او که‌نه علت دضعف او کمزوری په‌معنا و واخستل‌شی، نودا معنی که څه‌هم ددې حروفو سره‌لږ وډیر اړخ لګوی خوپوره تطبیقی نومندی له دی کبله که‌چیری دحروفوعلت په ځای امدادی

(۱) مقدمهٔ فرهنګ نظام جلد ٤

حروف یاامدادی آوازونه یاصایت حروف ورته‌وایو ؛ نوهم په‌دلفظ اومعنی ترمنځ څه تناسب اوارتباط پیداشی اوهم په‌پښتو کښې دنوی‌والی اوعصریت رنګ موجود شی .
آوازونه په‌پښتو کښې پردوه ډوله‌دی یو اصلی‌دی بل‌امدادی اصلی‌هغه دی چه‌بی دنوروله امداد څخه نه ویل کیږی اوامدادی‌هغوته وایی چه دهغو په‌واسطه او کومك اصلی حروف اداکیږی لکه په‌پښتو کښې ( ا ، و ، ی ، ه ) نوپه‌دی لحاظ هم دامدادی حروفو نوم‌ښه اوموزون دی .
اسم معنی : په‌اکثروپښتو اونورو گرامرو نو کښې دا اصطلاح قبوله شوی‌ده او اسم معنی داسم‌ذات په‌مقابل کښې هغه‌ته وایی،چه‌په خارج کښې مستقل وجودنه‌لری او وجود ئې دبل‌شی تابع وی‌لکه (فکر، عقل ) چه په‌خارج کښې‌ئې کوم ذات، جسم‌اوځانله وجود نشته‌بلکه وجودئې داشخاصو تابع‌دی. دانوم‌هم دځپلی معنی‌سره څه‌خاص تناسب نه‌لری اوناموزون‌ښکاری،وجه‌دادەچه هرنوم‌ته‌سړی‌اسم معنی ویلای شی، کوم‌مطلب چه‌دیو لفظ څخه‌مرادشی، په‌بل‌عبارت‌هرلفظ‌چه‌یومفهوم دلالت‌وکړی‌هغه‌دهغه‌لفظ‌معنی‌ده اوهرلفظ اوهرنوم‌ته دیوی معنی نوم ویل صحیح او معقول دی .
نو داسم معنی‌پرځای چه کوم‌موزون نوم شته‌او داسم ذات‌په‌مقابل کښې‌ئې باید استعمال کړو هغه‌د (اسم‌مجرد)نوم‌دی‌اسم مجرد دامعنی چه‌دیومجرد شی‌نوم‌وی‌اوله‌جسم‌اوذات‌څخه‌مجرد اوتنهاوی لکه اندیښنه خیال اوداسی‌نور .
اسم‌اشاره : تراوسه پوری په‌زیاتوگر امرونو کښې دا اصطلاح قبوله شوې ده لیکن که څه قدرغوراوفکر پکښې وکړی شی نوموزونه اوغوره‌نه معلو میږی ځکه کم وخت چه مونږ په‌نوی تقسیم دکلام اجزا بیانوو نوپه‌هغو کښې ( اسم ، ضمیر ، صفت ، فعل ، قیود . ادات ) هر یوبیل بیل دکلام‌جز یادکړمی قسم بلل کیږی‌دا اقسام هریوجلا جلا تعریف لری اوپه‌دې هریوقسم کښې نورډیر قسمونه داخلید ای شی .
مګر که‌چیری مونږ اشاری ته متوجه شو اوپه معنی اوخصوصیت کښې ئې فکر وکړو نو داراته معلومیږی چه‌په‌اشاره کښې دصفت‌معنی او خصوصیت لیدل کیږی مثلاً صفت هغه‌دی چه دیوبل اسم حالت او څرنګه والی بیان او حالت ئې محدود کړی او هغه ته یو قسم تخصیص ورکړی نواشاره هم هو بهو دا کار کوی او دیو اسم د تعین او تخصیص د پاره استعما لیږی .
کم محدودیت اوتخصیص چه‌مثلاً په ( ښه ) سره‌یوسړی ته حاصلیږی هغه په (دا) سره هم لاس‌ته‌راځی، بلکه‌لاداشاری په کلمو کښې له‌نورو صفاتو څخه تعریف اوتخصیص زیات دی‌لکه (داسړی زماځیل‌دی ) بله‌خبره‌داده چه‌داسم په‌تعریف کښې‌هم داشاري کلمی پوره نه‌شاملیږی ځکه اسم‌هغه‌دی چه‌دیوشخص یایوحیوان یایوځای نوم وی او ( دا ) او نورو اشاروته چه کورو یوته‌هم دیوشی‌نوم نشوویلای له‌دې‌څخه معلومه‌شوه چه‌په اشارو کښې داسم والی معنی کمزوری اودصفت‌والی معنی غالبه ده نوپه‌دې لحاظ بایده‌دی چه صفت اشاره ئې وبولو، او داشاري کلمو ته‌د اسمای اشارات پرځای اشاری صفات ووایو .

**اسم عدد :** دانوم هم د تقلید په وجه په پښتو کښې راننوتی دی، مګر که فکر وکړو نو یو تطبیقی شی نه دی، لکه چه وړاندی مو وویل: اسم هغه دی چه د یو شی نوم وی او پر یو شی دلالت وکړی، دا معنی په عدد کښې هم نه لیدل کیږی عدد یید و لکه د اشارې، د صفت معنی ور کوی او د یو اسم معنی معدود حالت او کیفیت د شمیر او تعداد په لحاظ بیانوی لکه : (څلور قلمونه ـ پنځه کتابچې ) دا کټ مټ داسی مثال لري چه سړی ووایی ( تور قلمونه ـ سپینې کتابچې) صرف دومره ده چه په وړاندی مثالو کښې د شمیر له مخه د قلمونو او کتابچو حالت تخصیص او تعین شوی او په وروسته مثالو کښې د رنګ او ظاهری وصف په لحاظ دغه تخصیص او تعین راغی ، نو په دې اعتبار ویلی شو چه عدد هم په صفت کښې حسابیږی اوله اسم ویلو څخه ورته صفت ویل ډیره او بهتر دی یعنی عدد ته باید صفت عددی او د صفت یو قسم ووایو نه دا چه اسم عدد او دا سم یو قسم ئې وبولو .

**موصولات یا اسمای موصوله :** یو مشکل نوم دی چه په پښتو کښې اخستل شوی دی مګر او س ئې پریښودل پکار دی په عربی کښې صله، موصول او موصولات یو ځانله سلسله ده چه هلته البته تطبیقیدای شی، لیکن په پښتو کښې دومره ګرانه اصطلاح اخستل کومه خاصه فایده نه لری مثلا په پښتو کښې (څوک چه ـ چا چه ـ څه چه ـ هغه چه ـ کوم چه ) دې ټولو ته موصولات یا اسمای موصوله ویلی شوی دی. هر کله چه دا یو سخت او مشکل نوم دی، سر بیره ، هغه خصوصیات چه په عربی کښې ئې لری په پښتو کښې نه لیدل کیږی نو له دې کبله ښایی چه دغو کلموته ربطی ضمیرونه ووایو ، ولی چه دا یو آسان او ښکاره تطبیقی نوم دی . دا کلمی په جمله کښې د ربط کار ور کوی او د یو شی او نوم پر ځای استعمالیږی لکه په دې عباراتو کښې څه چه کړی هغه به ریبی ـ کوم چه اخلې هغه واخله ـ څو ک چه بیائې هغه بو ځه ) .

**اسم استفهام :** (څوک ، چا ، څه ) او دغسی نورو کلموته ځینو کسانو اسمای استفهام ویلی دی ، لیکن دا اسما او تعریف پری په ښه شان نه تطبیقیږی . ځکه چه په (څوک ، چا او څه) کښې له اسمیت څخه د ضمیر والی رنګ ډیر دی او دا کلمی همیشه د ضمیر په شان استعما لیږی مثلا پر ځای د دی : چه کم سړی وویل ؟ کم سړی راغی ؟ داسی ویل کیږی چه : چا وویل ! څوک راغی ؟ له دینه معلومه شوه چه دا کلمی د ضمیر حیثیت او حکم لری او باید چه استفهامی ضمیرونه ئې وبولو نه دا چه اسما ی استفهام ورته ووایو ولی چه دا سمیت له معنی څخه لیری ښکاری ،

**اسم منسوب :** دا نوم چه په پښتو کښې کوموموالو ته ویلی شوی دی هغه داسی نومونه دی چه له اسمیت څخه پکښې د صفتیت جنبه غالبه ده لکه توریالی ـ کبرجن ـ کامه وال ـ کابلی یا داسی نور صفات، دې کلموته چه و ګورو نو ټولی د یو بل نوم وضاحت کوی او د هغه حال بیانوی لکه : (توریالی سړی ، کبرجن سړی ، کامه وال او کابلی سړی) او دا بیخی د صفت معنی ده نو په دی لحاظ باید دغسی کلماتوته دا اسم منسوب پر ځای نسبتی صفات ووایو او پر دې نامه ئې وپیژ نو .

جنس‌مستوی : په (قواعد پښتو) کښې دا اصطلاح داسې راغلی ده ، وايي چه جنس‌مستوي هغه دی چه په نراوښځی دواړو دلالت وکړی لکه « سپيږه ، ورګه » ښکاره ده چه هره ژبه ځانله خصوصيات لري ، دامنوچه په انګريزي او يا نورو ژبو کښې جنس مستوي شته مګر په پښتو کښې پرته له مذکراو مؤنث څخه نر، ښځي الفاظ نشته چه مونږئي جنس‌مستوي وبولو . په پښتو کښې درست الفاظ يا به مونث وي اويا به مذکروي . سپيږه ، ورګه دارنګ مچ اوماشي که څه هم دنراوښځی دپاره استعماليږي مګردلفظ له مخه اول مونث او آخرني مذکرنومونه دي . دا ځانله خبره ده چه په ژبه کښې دخزنده ؤدپاره دمذکراومونث فرق نه‌دی شوی ، ګرامراوصرف ونحوله الفاظو څخه بحث کوی داستعمال اوظاهرپه لحاظ چه ګوروپه پښتو کښې دريم قسم الفاظ نشته نوپه‌دي اعتبار دجنس مستوی اصطلاح په پښتو کښې صحيح نه ده او بايد له دې بی ځايه تقليد څخه تېرشو او دا نوم له پښتو ګرامر څخه و باسو .

متصل‌ضميرونه :دانوم هم‌په پښتو ګرامرونو کښې ليدل کيږي مګر په تطبيق کښې ئې غور اوخيال نه‌دی شوی . مثلاً داضميرونه (مې ، دې ، ئې ، مو ، را ، در ، ور) په متصلو ضميرونو کښې راغلی اومتصل ضميرونه بلل‌شوی دی ، حال‌دادی چه داستعمال اوظاهر په لحاظ په بل‌عبارت د اتصال اونه اتصال له مخه په‌دغو ضميرونو اوهغوضميرونو کښې چه‌منفصل بلل‌شوی‌دی هيڅ فرق او توپير نشته لکه دا :(زه ، ما ، ته ، تا ، مونږ ، تاسې ـ دی ، ده ، دوی او داسې نور) يويومثال به‌ئې راواخلو ، دمثال‌په ډ ول وګوري چه (زه او مې) دواړه‌يوشان ضميرونه‌دی ، دواړه يو رنګ جلاليکل کيږي او دبلې کلمې سره‌نښتي‌نه راځي ، نوبيا (زه) ته منفصل او (مې) ته‌متصل ويل يوه بي‌دليله‌خبره ده . بلکه دادو اړه منفصل‌ضميرونه دي‌چه‌له‌نورو کلموڅخه‌جلا کښل کيږی‌هو! متصل ضمير ونه هغه‌دي چه له‌فعل سره پيوست اونښتي‌راځي لکه (م ، و ، ی) په‌دي مثالو کښې (ځم ، ځو ، ځی) نومطلب‌داشو چه‌په‌پښتو کښې د (مې ، دې ، ئې ، مو ، را ، در ، ور) ضميرونوته متصل ضميرونه ويل‌يو بی‌تناسبه نوم‌دی اوبايد چه د ې ضميرونو ته هم‌لکه‌د ( ما ، تا ، زه ، ته) غوندی‌منفصل‌ضميرونه‌وويلی‌شي . په‌دې‌صورت بيا‌په‌پښتو کښې منفصل ضميرونه‌پردری ډوله کيږی‌اول‌ئې لکه (مې ، دې) دوهم‌ئې لکه (را ، در ، ور) اودريم‌ئې لکه‌ما ، تاوداسې نوردي داضميرونه‌په‌خپل‌منځ کښې‌اول‌اودوهم‌دريم‌لمبر سره‌پيژندای‌شي‌نورفرق‌ئې معنوی‌يعني‌په‌استعمال کښې‌دی

مشترک‌ضمير : په‌ځينو ګرامرو لکه (وافيه ، پښتوپښويه ، پښتو ښوونکی ) کښې د ضمير مشترک اصطلاح‌راغلی‌ده او د (خپل) کلمې ته‌ئې مشترک‌ضمير ويلی دی لکه‌په‌دی‌ځای کښې (حميدنن‌خپله‌راغی) مګردانوم هم‌يو بی‌ځايه اوبی‌تناسبه نوم‌دی ـ لمړی‌ـ خبره‌خو داده چه (خپل) ضمير نه‌دی بلکه‌اصلاً صفت‌دی لکه‌په‌دی جمله کښې (دامې خپل‌سړی‌دی) چه‌د پردی سړی په‌مقابل کښې دصفت پرډول استعماليږی . هو! کله‌د ضمير دتاکيدد‌پاره هم‌راځي مثلاً :

ماپخپله داکاروکړ ـ دی‌په‌خپله‌راغلی‌و ـ او کله‌دااضافت کارهم‌ور کوی لکه‌دا قلم‌زما خپل‌دی زه‌دخپل‌قلم‌نوک پيژنم ، خوپه‌دې‌يو صورتو کښې ، هم‌ورته‌ضمير نه‌ويل کيږی . بيا‌خپل‌ته مشترک‌ضمير

ويل هم څه معنی نه لري ځکه چه دا کلمه په مذکر او مونث کښې فرق لري، د مذکر دپاره خپل او د مونث دپاره خپله استعماليږي مثلاً: (دا قلم زما خپل دی ـ دا تخته زما خپله ده) غرض دا چه (خپل) ته په پښتو کښې ضمير او يا مشترك ضمير ويل هسې سرسري خبره ده او بايد چه صفت ورته وويلی شی. هو! په پښتو کښې ځنی مشترك ضميرونه شته لکه (دوی) چه د جمع مذکر او جمع مونث دپاره شريك دی يا (زه) چه هم د مذکر دپاره دی او هم د مونث دپاره، په دې ډول نور هم دروا خله!

البته چه دغسې ضميرونو ته مشترك ضمير ويل صحيح او معقول دی نه دا چه (خپل) ته مشترك ضمير و وايو.

<u>نسبی ضميرونه :</u> په پښتو ليار کښې (وم، وو، وې، وی، و، وو، وه، وې ـ يم، يو، يې، ئې، دی، ده، دی) نسبی ضميرونه بلل شوی دی. دا نوم او دا اصطلاح له دوو جهو څخه ښه او موزونه نه ده، يو خو دا ده چه ددې کلمو په ضمير والی کښې شك دی او اکثر خلك ئې ضمائر نه بولی بلکه امدادی افعال ورته وائې، بله دا ده چه فرضاً که ضميرونه هم شی، خو د نسبی معنی ورسره څه مناسبت نه لري، که مطلب داوی چه د قرب او بعد نسبت پکښې دی؛ دا هم کمزوری غوندی خبره ده، نو غوره دا ده چه دغو کلمو ته امدادی افعال و وايو، ولی چه دا فعالو خصوصيت پکښې ښکاره دی او زما نه ترې څرګند يږي لکه چه: (وم، وو) په ماضی کښې او (يم، يو) په حال کښې استعما ليږي.

<u>جعلی او نوعی مصدر:</u> د پښتو په ځينو ګرامرو لکه: (وافيه، پښتو ښوونکی، پښتو ښويه) کښې د جعلی مصدر، او په پښتو ليار کښې د نوعی مصدر اصطلاح اخستل شوې ده. په دغو کتابو کښې جعلی او نوعی مصدر هغه ته وايی چه د (توب، تيا، والی) او داسې نورو علامو په زيات والی جوړ شوی وی لکه (ليونتوب، روغتيا، اوزد والی) ليکن که دغسې نومو ته ځيرشو او غور پکښې و کړو نو نوعی او جعلی مصدر ويل لا څه؛ چه په خپله مصدر ويل هم ورته نا موزون او بی تناسبه دی. او له خبره خو دا ده چه مصدر اصطلاحاً د فعل او کار نوم دی او په هغه کښې د فعلی معنی وجود لازم دی؛ چه په دې وجه مصدر ته اسم فعلی هم وايی، مګر په ليونتوب، روغتيا او داسې نورو کښې د فعلی معنی پته هم نشته، نو وايو چه ليونتوب او روغتيا مجرد. وصفونه دی چه د موصوف ذات يعنی د ليونی او روغ صړی حاصل صفت په بل عبارت وصف حاصله او حالت ښيی. دوهمه خبره دا ده چه جعلی هر جوړ شوی او تر کيبی مصدر ته ويل کيږی او دا اصلی مصدر په مقابل کښې استعماليږی مثلا (پخلا کول، تورول) هم په جعلی مصدر کښې داخليدای شی، نو يوازی ليونتوب، روغتيا او دا ډول نورو ته جعلی مصدر ويل يوه عامه تطبيقی اصطلاح تشی کيدای. هر څه چه د نوعی مصدر نوم دی، په دې نامه کښې خود نوميدلو وجه ظاهر هيڅ نه معلو ميږی. که مطلب دا وی چه ليونتوب هم يو نوع مصدر دی ځکه ورته نوعی مصدر وايی دا خبره په هغه صورت چه د ليونتوب مصدريت ومنلی شی البته چه لږه ډيره صحيح کيدای شی، ليکن دا نوم بيا هم څه خاصه ترجيح او بهتری نه لری ولی چه ټولو مصدرو او هر قسم مصدر ته بايد نوعی مصدر و وايو.

نوغرض داشو چه ليونتوب ، روغتيا اوداسې نورو ته جعلي اونوعي مصدر ويل ؛ نه د ګرامر په اساس اونه دلغت په اساس صحيح اودرست معلوميږی . لهدې کبله پکار دی چه دغسې کلموته مجرد وصفونه وويلې شي . لکه چه په اسم کښې مجرد اسماشته دغسې په صفاتو کښې هم مجرد اوصاف موجود دی . مثلا ليونی نوذاتی صفت دی يعنی ذات ښيی اوليونتوب ئې وصف مجرد دی ، چه ددغه ذات محض وصف څرګندوی .

اصلی مصدر : ځينی کسانو هغو مصدروته چه په آخر کښې ئې (ل) وی اصلی مصدرونه ويلی دی ، اوپه مقابل کښې ئې هغه مصدرونه چه په ( کول ، کېدل ول ، بدل)مختوم وی ترکيبی بللی دی لکه (پخلا کول - پخلا کېدل - تورول - توربدل) مګر په پښتو کښې لام والا مصدرونه هم ځينی داسې مثالونه لری چه دترکيبی په مقابل کښې اصلی مصدر ويل ورته مناسب اوموزون نه ايسې، بلکه هغه هم ترکيبی اوله دوو اجزاو څخه جوړ شوی دی لکه : (پوری وتل - کښېوتل-پری کول -پری ښودل)

هو! دلام والا مصدرو اود کول ، کېدل ، ول، بدل والا مصدرونو په منځ کښې د ومره شته چه په کول ، کېدل ول ، بدل والا مصدرونو کښې اول جزء په خپله معنی راځی او معنی نه بدلوی لکه (پخلا، تور) چه ترکيب په وخت هم له خپلې معنی څخه نه وځی . اوپه لام والا مصدرونو کښې دواړه اجزا په خپله معنی نه پاته کيږی اوپوه بله معنی ورکوی، مثلا(پوری)ځاني يوادات او(وتل) دبرآمدن په معنی دی خوپه (پوری وتل کښې ئې يا بله معنی پيدا کړی دمچه لهويالی اويا سيند څخه تيربدلوته وايی نومطلب داشوچه دغه دول لامی مصدرونو ته اصلی مصدر ويل موزون نه دی اوبايد د و اجزايی لام والا مصادر ئې وبولو .

مستعمل اوغير مستعمل مصدر : په ځينو ګرامرونو کښې دغيرمستعمل مصدر لکه ( ځل ولاړل ) وجودهم منل شوی دی داصرف ددې دپاره چه دځی اوولاړ فعلونه ورڅخه مشتق کړی مګر زما په عقيده دغه ويش اودغه نوم يوصحيح شي نه معلوميږی . اوله خبره خوداده چه مصدر د کلمې يوقسم دی کلمه يومعنی داره لفظ ته وائی نو دغسی غيرمستعملو مصدرونوته چه څه معنی نه لری لکه(ځل، ګورل، وينل) مصدرويل لاڅه چه کلمه ويل هم دصرف په اساس صحيح نه ښکاری اوهرڅه چه دافعالود اشتقاق خبره ده په دی کښې هم غير مستعمل مصدرته ضرورت نشته بلکوله مستعملو مصادرو څخه هم جوړيد ای شی مثلا ويلای شو چه ځی له تلل څخه دلامونوپه حذف اودتاوځ په تبديل جوړشوی دی اوله کتل ليدل تلل څخه ( ګوری،وينی، ولاړ ) خلاف القياس افعال دی چه دا په هره ژبه کښې شته اوپه پښتو کښې لالنږدی بله خبره داده چه مشتق منه اومأخذ بايد يوداسی شی وی چه له فعل دمخه معلوم وی، حال دادی چه (ځل اوولاړل ) دځی اوولاړ له پيژندلو څخه وروسته معلوميږی نوداسې مصدربه سړی څه کړی چه له فعل نه وړاندی ئې ونه پيژنی-لهدې کبله دغيرمستعمل مصدرراوړل په پښتو کښې کم ضروری شی نه دی اوبايد سرېږې خوږنکړو اوورڅخه تېرشو .

تام مصدر او ناقص مصدر: په پښتو لیار کښې ئې هغه مصدر ته چه تولې صیغې ځنې جوړیږي تام او هغه چه تولې صیغې ور ځخه نه جوړیږي ناقص مصدر ویلې دی
د تام مثال لکه وهل او د ناقص مثال لکه کتل دا نوم نه که څه هم ډیر بد نه دی مګر هر کله چه د تام او ناقص مفهوم د معنی سره ارتباط لري او د سړی فکر ته دا راځي چه د لته به کوم معنوي فرق مطلب وي حال دا دی چه دا اصطلاح د لفظي کیفیت له مخې ده نو په دی لحاظ له تام او ناقص ځخه د منظم او غیر منظم یاد تغیر پذیر او تغیر ناپذیر اصطلاح غوره او بهتره معلومیږي ځکه ښایي چه د تام او ناقص پر ځای د غه وروستي نومونه ومنو او قبول ئې کړو .
حاصل مصدر : دا نوم هم په پښتو کښې څه قدر غور او فکر غواړي تر او سه خو حاصل مصدر داسې مثالونو ته ویلې شوی دی لکه (وهنه ، لیدنه، لیده، کاته او داسې نور) مګر خبره داده چه هر ورژبه ځانله اساس او ځانله لار لري دا لازمه نه ده چه په فارسي کښې پرسیدن مصدر او پرسش حاصل مصدر بلل شوی دی نو موږ به هم پوښتل ته مصدر او پوښتنې ته حاصل مصدر ووایو بلکه زه لا یدی عقیده یم چه په پښتو کښې اکثر نومونه چه خلق ور ته حاصل مصدر وائي د مصدر د حاصل معنی پکښې نه لیدل کیږي او په خپله د مصدر په معنی دی مثلا لیدل او لیدنه پوښتل او پوښتنه د معنی په لحاظ کم فرق نه لري او دواړه مونږ په دیدن او پرسیدن سره ترجمه کولای شو که څه هم په استعمال او ظاهر کښې ئې یو له بله فرق موجود دی نو په دی لحاظ ور ته یو ځانله نوم هم ضروري دی هر کله چه د حاصل مصدر نوم ور سره ښه نه لګیږي نو باید ده دی چه معنوی مصدر ئې وبولو او یا اور ته کوم بل نوم پیدا کړو .

اسم فاعل او اسم مفعول: که څه هم دا نومونه په پښتو ګرامرو کښې دومره عام شوی دی چه بدلول ئې هم ګران معلومیږي مګر په هر صورت زما مطلب د لته نظریه ښکاره کول دی. د اسم فاعل او اسم مفعول نومونه په هغه شان چه په عربي کښې رراج دی پښتو ته راګډ شوی دی ،

لیکن که په پښتو کښې د دغو نومو خصوصیت ته وکتل شي نو د اسمیت ځخه پکښې د صفتیت رنګ غالب دی . د مثال په ډول وهونکی ته اصطلاحاً اسم فاعل او وهلی ته اسم مفعول وایی ، حال دا دی چه وهلی او وهونکی دواړه داسې کلمې دی چه د یو بل اسم د حالت بیان او وضاحت کوی لکه ( وهونکی سړی ،وهلی سړی ) او دا کټمټ د صفت معنی ده . د یو اسم د بیان او تشریح په اعتبار په دې جمله کښې چه حمید ښاغلی سړی دی او په دی جمله کښې چه حمید (منونکی یا منلی سړی دی ) هیڅ فرق نشته، البته دومره فرق شته چه ښاغلی، اصلي او ذاتي صفت او منونکی او منلی فعلي صفت دی ولی چه فعلي د معنی پکښې دی. نو ویلای شو چه د اسم فاعل او اسم مفعول نومونه هم په پښتو کښې موزون نه دی ، او منونکی او منلی یا دغسې نور په اسماؤ کښې داخلول ؛ زړه ته ښه نه لویږي . له دې کبله باید ده دی چه دغسې کلمې چه له مصدر ځخه جوړیږي فعلي صفات وبولو ، او بیا کوم چه د فاعل په معنی وی هغه ته صفت فاعلي او کوم چه د مفعول په معنی وی هغه ته صفت مفعولي ووایو . لکه منونکی

اومنلي چه لمړی فاعلی اودوهم مفعولی صفت دی . بلهخبره داده چه داسم فاعل اواسم مفعول نوموته په پښتو کښې جامع نوموته نهمنهدی یعنی ټولو مثالو ته نهشاملیږی . په پښتو کښې فاعلی نوموته پردوه دوله دی یوهغه دی چه دمصدر په آخر کښې د(ونکی) په زیاتوالی جوړیږی لکه راتلونکی اوختونکی اوبل هغهدی چه دلازمی مصدرو په پای کښې د(ی) په راوړلو لاس ته راځی لکه (راغلی ، ختلی ) خوداسم فاعل نوم اول قسم ته شاملیږی اودوهم قسم ته څوك اصطلاحاً اسمفاعل نهوایی هرڅه چه دصفت فعلی یاصفت فاعلی نوم دی ، دادواړوته شامل دی صرف فرق دومره دیچه راتلونکی اوختونکی دحال اواستقبال په معنی فاعلی صفات اوراغلی ، ختلی دماضی په معنی فاعلی صفات دی . پردې ډول مفعولی نوموته هم پردوه رازه دی یو هغه دی چه دمجهول متعدی مصدر په آخر کښې د (ونکی) په راوړلو جوړیږی لکه وهل کېدونکی اوبل هغهدی چه دمتعدی معلوم مصدر په پای کښې د (ی) په لګولو تیاریږی لکه ( وهلی ، منلی ) په دې کښې هم داسم مفعول نوم دوهم قسم ته ویلی شوی دی اواول قسم ته چانه دی ویلی . نو کوم موزون نوم چه دې دواړو قسمونو ته شاملیدای شیهغه دصفت مفعولی نوم دیاوځودواړوته مونږصفتمفعولی ویلای شو. ددغو دواړو ترمنځ همهاغه فرق شته؛ کمچه په صفتفاعلی کښې و، یعنی وهل کېدونکی دحال اواستقبال په معنی مفعولی صفت دیاووهلی دماضیپه معنیمفعولی صفت بلل کیږی .

صفت مشبه : په ځینو ګر امرو کښې دصفت مشبه اصطلاح هم لیدل کیږی اوهغه فاعلی صفت چه دلازمي مصدر څخه د (ی) په زیاتوالی جوړ شی . صفت مشبه بولی لکه راغلی او تللی . دانوم هممحض تقلیدی نوم دی اودعربی دتقلیدپهوجه ایښوول شوی دی . ګکه ـ صفتمشبه په پښتو کښې هغه کیفیت نهلری ؛ کمچه پهعربی صفت مشبه کښې لیدل کیږی . پهعربی کښې بهالبته دانوممناسب اوموزون وی ځکهچه هلته صفت مشبه پهعمل کښې داسم فاعل سره مشابهت لری، مګر په پښتو کښې ددې نامه دیاره کمهوجه نشته اونه داته دصفت مشبه اواسم فاعل په بېلولو کښې کمه فایده شته ؛ له دې کبله وایو چهتللی اوراغلی ته لهصفت مشبه څخهفاعلی صفت ویل غوره اوبهتردی اودانوم ورسره موزون او ښهلګیږی .

مضارع : دانوم همپهپښتو کښې سخت اوزیږ بریښی اوصحیح ذوق ئې منلوته نشی تیاریدی. ځینی خلکو پهپښتو کښې (وخوری ، وګوری ) اونورو داسی صیغوتهمضارع ویلی ده ، مګر ددې ګران نوم پهمنلو کښې سرخوزول هسې یوبی فایدی شی دی : پهعربی کښې د حال ، استقبال او مضارع دپاره یوشکل اویوه صیغه ده لکه ( یضرب ) مګر پهپښتو کښې دحالدپاره دوهصیغیموجودی دی . یوه لکه ګوری اوبله وګوری. دېدواړو صیغو ته حـال ویلای شو ، لیکن فرق ئې دا کول یکار دیچه اوله دحال جاری صیغهاودوهمهدحالمطلقصیغه ده، چهدمطلق حالبیان کوياوداستمرار قید پکښې نشته. پهدې لحاظ ښائی چه پهپښتو کښې دمضارع لهنامه څخه تیرشو اودحالجاریاوحال مطلق نوموته قبول کړوځکه چهپه یو آسـان نوم مطلب حاصلیږی نو ګران نوم تهڅه حـاجت دی ؟!

**نهی :** دپښتوپه پخوانو گرامرونو کښې دیو کاردنه کولوامرته نهی وایی لکه مه‌رازه ،مه‌پاڅه
په عربی کښې که څه‌هم‌دنهی اونفی ترمنځ فرق شته لکه هغه‌فعل چه‌په‌هغه کښې دنه کولوا مروی
نهی بولی اونورو افعالوته چه‌دفعل پرنه کولودلالت کوی نفی‌وایی لکه‌نه راځی ، نه دی تللی .
په پښتوکښې هم‌ځینی کسان دغه فرق‌ته قایل‌شوی دی‌اودنهی اصطلاح ئی‌منلی‌ده ، مگرز مایه
خیال‌په پښتو کښې‌دې فرق‌ته‌دومره‌حاجت‌نشته اونه‌دنفی‌اونهی له‌فرق‌څخه کمه خاصه فایده ولاړ یږی
له دی کبله ښایی چه‌ټولوافعالوته چه‌پرنه کولودلالت کوی یوشان‌منفی افعال‌ووایولواو که چیری‌دیو
کارپرنه‌کولوامروشی هغه بایدمنفی امروبولو . دانوم آسان اوعام فهم‌دی او پوهیدل هم‌پری بی
تکلیفه دی . څو پوری چه پوخا ص ضرورت نه‌وی نو له‌اصطلا حاتوډیر و لوڅخه اصطلا حات
لنړول ښه دی .

**حروف جاره:** په ځینو گرامرو کښې دا اصطلاح هم‌راغلی ده، مگریوتطبیقی نوم‌نه معلومیږی
وجه داده چه په‌پښتو کښې که‌څه هم‌حروف جاره دمعنی په لحاظ موجوددی چه‌دارتباط اواتصال
کارور کوی لکه (ته) په‌دی جمله کښې( کورته‌ځم)مگردلفظ په‌لحاظ دانوم‌په پښتو کښې‌یوبی‌معنی
نوم‌دی . هوا په‌عربی کښې موزون‌اومناسب دی ځکه چه‌هلته دحروف جاره و کار ، جراوزیر
پیدا کول دی‌لکه په‌دې جمله کښې (مررت بزید ) چه په حرف جاراوزید مجرور اومکسور دی
لیکن په‌پښتو کښې نه‌جرشته‌اونه‌دغه حروف دجریازیرد پید ا کولو کار کوی ، بلکه لاځینی حروف
پکښې بالعکس‌نصب اوفتحه پید ا کوی‌لکه ( له‌کوره‌راغلم - ترکوره پوری ځم) له‌دی کبله
وایوچه‌دی حروفویعنی (له، ته، تر، نه، څخه، ځنی، په، کښې، لره، له) ته‌حروف جاره ویل بالکل‌ناموزون
اوبی‌تناسبه‌دي ، اوباید حروف‌ارتباط یادربطادات ورته‌ووایو ، ځکه‌چه داحروف په پښتو کښې
دارتباط کار کوی اودوو کلمو ترمنځ‌ربط راولی لکه( له کوره راغلم - کورته‌ځم) دې حروفو
ته‌حروف مغیره‌هم‌ویلای شو، ولی‌چه‌په‌لفظ کښې‌تغیرپیښوی‌اوعمل کوی‌نودانوم‌هم ورسره مناسب‌دی .
البته‌چه په‌پښتو کښې ځنی‌نور هم‌دغسی‌اصطلاحات‌شته‌چه موزون اومناسب نه دی مگر مهم‌ئی‌هم
داووچه‌بیان‌شول ، زمامطلب‌په‌دی لیکنه کښې‌صرف‌یوه یا دونه‌اودنوروښاغلوپام کول‌وو،په،وجوده
وخت کښې چه‌پښتانه فاضلان اودژبې‌پالونکی دپښتو دخدمت‌په‌لار کښې روان‌دی اودپښتوژبې
د گرامردلیکلو کوشش جاری‌دی‌په داسی‌وخت کښې دې خبری‌ته ملتفت کیدل ضروردی ځکه
چه‌اوس‌هم‌لاابتداده‌اوزمونږ گرامری‌اصطلاحات‌لا په‌یوپاخه اوقوی معیار نه دی‌دریدلی اوس‌مونږ
کولای شو چه‌دلغوی او گرامری غوښتنو سره‌سم ځنی‌نومونه او اصطلاحات وادوواوپر ځای‌ئې
نور کیږدو په گرامر کښې اصطلاحات‌اونومونه‌یومهم‌شی دی‌اودشوڅورومرزونو اومناسبواصطلاحاتو
منل‌او قبول یولازمی خبره ده‌ځکه‌چه یونوم څومره چه د مطلب اومعنی سره یو تناسب اوارتباط
ولری هاغومره زیات مقبولیت اوعمومیت پیدا کوی سربیره‌پردې یوښه عنوان‌دښه معنون‌دلیل‌دی .
داوی په‌دې باره کښې یوڅو خبری نورمو په‌خدای سپارم !!

# دپښتو نثري سبکونه

گل پاچا «الفت»

لکه‌چه په‌توره شپه کښې‌دیوه سړی آواز پېژ نو اوپه هینړو چه‌دازغ دچادی دغسې‌دیوه لیکوونکی لیك که څه‌هم ددەنوم ورسره‌نه‌وی پیژندلی شو اودیوه ادیب‌یاشاعر شعرو مضمو ن هم‌د ځینوخصوصیاتو په‌رڼا کښې پیژ نواوراته معلومیږی چه‌داخبری دچادی او دغه لغات یا کلمات په دغه رنګ اوډول دچااله فکر اوقریحی څخه زیږیدلی‌دی.څنګه‌چه ددومختلفو هوادونوپه ویناکښې دژبی اوژبنیو خصوصیاتو په لحاظ ډیر فرق‌وی اوپه یوه ژبه کښې‌هم ددوو سمتوپه لهجه کښې ځینی مخصوص شیان وینو دیوه کلی اویوه‌ښار دژبوړواو لیکوالوپه‌نظم اونثر کښې هم بعضی ممیزات گوروچه خپل‌لیکوونکی ښئی



اوسره‌له دې‌چه څوتنه ادیبان په‌یوه‌ځای کښې ژوند کوی په‌یوه‌ژبه اویوه لهجه به گړیږی ، دخبرو گرامر اودلغاتو قاموس به‌ئې‌یووی ، په کورنیږ اونثر کښې به هم‌ډیرنژ دی‌وی‌مگر دنیان اوافادی ډول به‌ئې فرق لری * د مطلب تعبیر او تصویر به ئې یورازنه‌وی ،دجملو ښاغلی گل‌پاچاخان«الفت» نښلولو او د مضامینو قالب به ئې بل رازایسی . د خبرو خوند او رنگ به ئې له ورا معلوم وی، همدغه خصو صیات چه‌دیوه اوبل‌په لیکنو کښې لیدل کیږی‌او بیانیږی‌نه‌ سبك ورته وائې چه د اشخاصو په‌لحاظ ئې‌فرق اواختلاف لنږ څه دقیق اوباریك ایسی‌مگر دسمتونو اوولایاتو په اعتبارئې بیلوالی‌واضح اوڅرگند وی مگردژبو دبیلتون‌په‌سبب ئې‌لاڅیره غټیږی اوفرقونه‌ئې ډیر روښانه کیږی پدې‌مقاله کښې مطلب دژبو دسبکونو بیان‌نه‌دی بلکه‌دپښتو سبکونه‌له‌نظر لاندې،دی دپښتو په سبکونو کښې هم‌داشخاصو په‌مخصوصو سبکونه اصالتاً نه‌غږیږو بلکه هغه موجوده سبکونه ښیوچه هریو پخپله سیمه کښې مشترك سبك باله‌شی اویوڅه لیکوال پکښې شرکت لری مگر ددې مطلب دایضاح اوځینو تعلقاتودپاره دمثال په‌ډول وایوچه‌زموږ په‌پخوانیو پخواو ډیرو نومیالیو شاعرانو کښې رحمان‌بابا اوخوشحال خان‌ختك ښکاره مقام لری اوهرڅوك به لږاوډیر پوهیږی چه‌دوی دوارړه که‌څه‌هم په‌پښتو شاعرانو کښې لمړی حق‌اوغوره سندری لری‌مگر دهریوه دشعری سربندې اواز معلوم‌دی اوپه‌نغمو کښې‌ئې هم‌مخصوص کیف پروت‌دی . ډیرځله ددوی دوارړو یوه مضمون ته‌پام شوی‌دی اویو مطلب ئې ادا کړیدی مگر ددوی شخصی اوفکری خصوصیت هغه مضمون ته بیل‌بیل رنگ ورکړی چه‌د خوشحال اورحمان دنظر بیلوالی ښئی اوسړی پوهیږی چه‌همدغه یوه خبره هغه په‌څه‌راز اودی‌ئې په‌څه‌ډول کوی . دنمونې په‌ډول ئې داد‌وه بیتونه و گوری :

(۱) دعالم ډېرې خبرې دجهان تورې لښکرې — زړه مې نه ښوري ا ځکه غرخوهسې وي که نه
( خوشحال )

(۲) لکه ونه مستقیم پخپل مقام یم — که خزان راباندې راشي که بهار
( رحمان بابا )

په دې دوو بیتو کښې سړي ته معلومیږي چه هریو خپل استقامت ښئي یا په بل عبارت موږ ته د ثبات اومقاومت درس راکوي مگر خوشحال خان دتورو لښکرو او ولاړو غرونو نمونې راښئي اورحمان بابا په خزان اوبهار کښې زمونږ نظر یوې ونې ته رااړوي اوموږ پوهوي ·

دلته باید داگمان ونه شي چه ددوی دافادې فرق یوازې په تشبیهاتو پورې ربط لري او په مضمون کښې ئې څه تاثیر نه دی کړی ځکه چه خوشحال لکه یو پښتون مشر چه له پرديو سره په شخړه اخته وي موږ ته دجنگ اوجگړو په میدان کښې دټینگار اوزړ ورتوب تعلیم راکوي مگر رحمان بابا لکه یوصوفي یاحکیم ددنیا دور نگی ښئي او وائي چه انسان باید نه په دغسې بهارونو مغرورشي او نه ئې په دغسې خزانونو ملامته شي ، هغه موږ ته وائي چه تاسې دزوررو لښکرو په مخکښې ټینگ ودریږئ اودټینتي فکرله زړه وباسی مگر دی وائي چه په غم اوخو شحالۍ غلبه پیدا کړی اودزمانې مختلف دورانونه وزغمئ یعني دی موږ د آسمان په مقابل کښې په ښودروی اوهغه وائي چه له انسان سره مقابله و کړ یء .

په دې مثال کښې مقصد دادی چه هرلیکونکی یاشاعراوادیب لکه چه دظاهری بڼې په لحاظ مخصوص کړه وړه اوممتازه قیافه لر ی دغه رازدمعنوی شان او خلقی موجودیت په اعتبارهم له نورونه فرق لري او همدغه فرق دهغه پرخبرو اوطر ز تفکر کښې هم ځان ښئي اوسبك ورته وایه شي · نو که موږ وایو چه په پښتو کښې خوشحال ، رحمان ، حمید بیل بیل سبکونه لري ددې دا معنی ده چه دغه درې نوموړی شاعران هریو دفکراو معنی په لحاظ دتخیل اوتصو ر په اعتبار ، دعقل او منطق له حیثه د ژوند ون دنوعیت له کبله له هغه بل نه فرق لري اودهریوه معنوی مقام له بل نه بیل دی دهمدغه فرق او بېلتون په سبب موږ ددوی درې واړو په دیوانو کښې بیل بیل خوند گورواوپوهیږو چه په هر کتاب کښې دشعرډول اوسبك بیلیږي ، مقصد دادی چه هرشاعردسبك خاوند نشي کېدی اوداحق دهغو کسانو په برخه رسېدلی چه دافکارو اونظریاتو مخصوصه پانگه لري اوڅه مطالب ورسره وي ، ورو سته تر دغه اساسی شرطه بیا دهرشاعردافادی اوتعبیر مخصوص رنگ اودتخیل ډول یا ځینې نورشعر ی اوادبي صفات دیوه سبك په تشکیل او جوړښت کښې برخه لري اوپه دوهمه درجه کښې راځي ·

موږ دلته داو سنیو لیکو الو په خاصو سبکو نو باندې بحث نه کو و او مشترك سبکو نه زموږ دبحث موضوع ده چه لویو ډلو ته ئې نسبت کېږي دغه راز سبکونه اوس په پښتو کښې لکه دبوډۍ تال ( قوس قزح ) په درې رنگونو ښکاره کېږي چه یو په بل کښې څه قدر متداخل هم معلومیږي · په دې سبکونو کښې دلغاتو اختلاف ، داداء تعبیر دمحاوراتو بدلون ، دگرامر اوتر کیب وتصریف

بل رازوالی هم څه نه معلومېږي چه دغه راز تو پیر دیوې ژبې په مشترکو سبکونو کښې شته نه ایسي او په هر راز چه کېږي باید په یوه مشترك سبك تبدیل وو مومی مگر داهله کېږي چه د پښتو ټول لیکونکي په دی لاره کښې خدمت و کړي یعنی د هرځای لیکوال د بل ځای مخصوص لغات او محاورات استعمال کړي او ځیني مخصوص رنگونه د تعمیم یا ترك په اثر کښې ورك شي چه دیوی خوا اوبلې خوالیك دوه دوله و نه ایسي د همدې مطلب دپاره چه دغه رازرنگونه په یوه رنگ او یوه صیغه بدل کړو دلته ئې له څو عنوانو لاندې په واضح ډول ښیو او له ابهام یا غیر شعوري موجودیت نه ئې را باسو د ارنگونو اوادبي ډولونه مونږ د پښتو په ( لمړی - دوهم - دریم ) رنگ یادوو او له دري عنوانو لاندې ئې ښیو :

## (۱) گرامري بل رازوالی :

(۱) ډېر کلمات دي چه څو ك ئې د تصریف په لحاظ یو راز لیکي او څوك بل راز لکه د پرانیتل له مصدره چه په (لمړی) رنگ کښې ورځني د ماضی صیغه (وپرانیت ) جوړوی ، په دوهم کښې (پر انیت ) او په دریم کښې (پرانیتلو) وایه شي یا لکه د پاخول له مصدر څخه چه (وپاخاوه - پاڅوه - پاڅولو) جوړېږي دا فرق په اکثر و ماضی گانو کښې لیده شي چه د تو لو مثالونو راوړل بی ضرورته او بیفایده تطویل معلومېږي ځکه ئې د نوعیت په ښودنه اکتفا کوو (ولیکلی - ولیکه - ولیکلو - ووې - وویل - وویلی کتله - کاته - کتلو ) هم د ماضی مختلف صورتونه ښئي ۰

(۲ ) د فعل حال په جوړولو کښې هم د ځیني تصریفي او گرامري بل رازوالی په اثر کښې په بعضی مصادرو کښې دورنگی گورو لکه : در ېږي - ودر ېږي - کازي - وکازي ، باسی و باسی پرانزم - وپرانزم او داسی نور ۰ ۰ ۰ یعنی عینا د کازي په ځای وکازي او د پرانیزم په ځای وپرانیزم ویل کېږي ، هسی نه چه لکه وائی اووائی دوه مختلفی صیغې وبلل شی او بیل بیل ځایونه ولري ۰

(۳) دفعل حال امکاني صیغی لکه : لیدلا ی شم - لیدلی شم - منلا ی شم - منلی شم - ویلای شم ویلی شم او نور ۰ ۰ ۰ هم په دوه ډوله لیکل کېږي ۰

( ٤) مجهول فعل حال هم په دوو ډولو راځي په یوه ځای کښې وائی څوك چه ښه کارونه کوی هغه ته ښه سړی ویلی شی مگر په بل ځای کښې ښه سړی ویل کېږي مستعمل دي ، مگر دو مره خبره ده چه ویلی شي په اصل کښې د امکاني معلوم فعل صیغه ده او په بله معنی هم استعمالیږي ۰

(۵) د فعل حال مطلق مجهوله صیغه هم د پښتو دادبی رنگونو په اعتبار په دوه ډوله مستعمله ده ، ځیني وائی چه ډوډۍ وخوړلی شی زه به در شم او ځیني نور وائی چه ډوډۍ وخوړل شی یا وخوړه شي ۰ ۰ . د لته هم وخوړلی شی د امکاني معلوم او مطلق فعل حال صیغه ده چه بله معنی هم لري نو ددې دپاره چه التباس ورك شي باید یا امکاني افعات ارومرو په الف یعنی وخوړلای ولیکلای شي او یا په دغسی ځایو کښې یوازې وخوړل شي ولیکو ۰

(٦) ځیني مصادر هم شته چه مشتقات او افعال ئې په یوه خوا کښې شته او په بله کښې نشته لکه : بوتلل و ، واوړېده ، پرا نست او داسی نو ر ۰ ۰ ۰

(۷) دجمع اوتذکیروتانیث په قواعدو کښې هم ډېر داسې شیان پښتېږي چه دادبي سبك دورنګی ښئي یعنی په یوه خوا کښې یوشی په مونث ډول جمع کیږي لکه (شونډې) اوپه بله خوا کښې ( شونډان ) وائي اود مذکر جمع ورځنی جوړوي ، دلته ښائي ځینی کسان ووائی چه شونډان د (شونډ) جمع ده مګر ماچه اروېدلی دی ځینی کسان دشونډو په ځای شونډان وائی اودهمدغه یوه شي دپاره ئي استعمالوی نو که چیرته شونډه ، شونډ بولی یاهم یوشی په یوه ځای کښې په مؤنث نامه اوپه بل ځای کښې په مذکر نامه یادیږي . ځینی نور ی جمع هم شته چه مفرد ئي دټولو په اتفاق مؤنث دی مګر جمع ئي څوك په مجهوله (ی) اوڅوك ئي په معروفه (ی) د مذکری جمع په شان لکه ( سرې - لرګی ) لیکی اوپه ګرامر کښې دورنګی ښکاره کوی .

(۸) په مکانی ظروفو کښی لکه : هلته ، دلته چه په جمله کښې ظرف واقع کیږ ی ځینی پښتانه ورسره ( کښې ) هم یو ځای کوی او وائی هلته کښې یو سړی و ، مګر نور پښتانه یوازی هلته او دلته وائی :

## (۲) لغوی نااشنائي :

ډېر لغات شته چه د پښتنو په یوه خوا کښې مستعمل دی مګر په بله خوا کښې ئي څوك نه پیژ نی ځکه چه هلته نه دی رسېدلی اونه دی مانوس شوی نو ده ر ځای په لیك اوتحریر کښې علاوه د سبك په پېلوالی ځینی مخصوص لغات هم لیدل کیږي چه سړی پری دیوه ځای اوبل ځای لیك اوانشاء معلومولی شی ، ددغسی لغاتو ګډول اوخو رول خورا ضرور دی او ډېره لاز مه ایسی چه دغه رازنا اشنائي ورکه شي دا کار طبعاً کېدونکی هم دی ځکه چه اوس ورځ په ورځ ادبی ارتباطات زیاتیږي اودیوه ځای خبری بل ځای ته ر سېږ ی مګر په دغه طبعی کېدنه باید ا کتفا ونشي اولیکونکی په ارادی ډول ، په ډېره مینه پخپل لیك کښې دلیری ځایو پښتو لغتونه قبول کړ ی اودخلقو غوږونه ئي ورسوی ، که چیری مشرقي ا تحاد داوړی په ځای دوبی ولیکی اوپه طلوع افغان کښې اوړ ی ولیکل شي یادغه راز نورلغات لکه باړخو ، اننګی - پړه ، موچنه - پنډه ، پېر - غونډی ، غټه - تالنده ، تنا - ځړول ، ځوړوندول - بکوا - ټټنګ - پلا ، ځل - وده ، برار - بربېښنا ، پېلېو - چوغکه ، چنچنه - یوله بله ردوبدل شی دغه راز ادبی قرابت اودسبك دبشپړولو دپاره ډېرښه خدمت بالهشی مګر دومره خبره شته چه په دغه راز مخصوصو لغا تو کښې کله داسی هم پېښیږي چه یولغت په یوه ځای کښې په یوه معنی اوپه بل ځای کښې په بله معنی مستعمل وی یعنی دلغت لفظ عمومیت لری مګر معنی ئي په یوه ځای اوبل ځای کښې فرق اوخصوصیت لری لکه ( رغړول ) چه په یو ځای کښې برسېره پخپلې اصلی معنی د (غړوړو) په معنی هم مستعمل دی اودسترګو غړولو په ځای سترګی رغړول وائی مګر په یوه بله خوا کښې سره له دې چه تېږی رغړول پیژ نی په سترګو رغړولو نه پوهیږي ، همدارنګه نیول اورانیول په هر ځای کښې ویل کیږ ی اود پښتنو په هره خوا کښې د لفظ په لحاظ عمومیت لری مګر دمعنی اواستعمال په لحاظ یکښې خصوصیت

لیدمشی ځکه چه یوځای د پیرلو په معنی دی او په نورو ځایو کښې بله مخصوصه معنی لری، په دغسی مثالو کښې که د لغت اصلی معنی لغت ته ور کړه شی او په هر ځای کښې په هماغه معنی مستعمل شی نه به وی ځکه چه دیته هیڅ ضرورت نه لیدل کیږی چه رغړول دستر ګو غړولو په ځای استعمال کړو او غړول ترك کړو ، دلته زما مطلب دلیکوالو په لیك کښې دی له ویونکو سره څه کار نلرم که لیکونکی دغه راز لغات پخپل لیك کښې دخپلی معنا د پاره قبول کړی او د دغسی لغا تو معنی په نورو لغاتو بار نکړی عام محیط هم له دغو لغاتو کار اخلی او وایی ئی .

ځینی نور لغتونه دی چه په هر ځای کښې علاوه پخپلی معنی د یوه بل شی د پاره هم ضرورتاً د یوه تناسب او مشابهت په اثر استعمالیږی لکه دستر ګو « ګاتی » یا دستر ګو « مرغټانی » چه دستر ګو دسپین او تور د پاره و یل کیږی ځکه چه په ګردوالی کښې له ګاتی سره چه د یوه ګرد واله ه کانی نوم دی چه هلکان پری لوبی کوی ظاهری شباهت لری او په نظر کښې هماغه راز ایسی همدارنګه له مرغټانی سره هم چه ګنګټه ئې له پلیتی ،څخه جوړ وی او بیائی ځمکی په مخ رغړوی مشابهت لری نو ځکه ور ته څو ك د ستر ګو ګاتی او څوك ور ته دستر ګو مرغټانی وائی او د همدی لامله چه مرغټانی په ځمکه رغړول کیږی نو ستر ګو غړولو ته هم ستر ګی رغړول وائی ـ په داسی کلماتو کښې چه د ګاتی او مرغټانی حقیقت او ماهیت ته نظر و کړو دستر ګو ګاتی مرجح او ښه مناسب نوم معلومیږی چه بایدعمو میت پیدا کړی ، بعضی لغتونه داسی هم دی چه معنی ئی په هر ځای کښې یوشی ایسی مګر لفظ ئی ډیر لږ تغیر لری چه په کتبی او تحریری د نیا کښې تو پیر پیدا کوی یعنی څوك .( پټی ) او څوك (پوټی) لیکی د یوه په لیك کښې میندل او د بل داموندل ګورو ، د دغسی وړو اختلافاتو ور کول هم ضرور دی ځکه چه په دغو مره لږ تغیر یو لغت نشی دوه کېدلی چه د مرادفو لغاتو په نامه دواړه قبول شی او په لیك کښې ځای ومومی ، نو څه به کوو؟ او کوم صورت به غوره کوو؟ هر یو چه خپل اصل او ماخذ ته نژدی وی یا کوم التباس رفع کوی او څه ادبی فایده پکښې وی نو په دغه لحاظ لیری له اری څخه او سیوری له سوری نه غوره معلومیږی چه باید عمومیت پیدا کړی .

## محاوروی خصوصیت :

په پښتو کښې ډیر مفاهیم او معانی په محاوراتو ادا کیږی او د پښتو اصلی او خپل سبك هم د پښتو په مخصوصو محاورو کښې مومو. د مثال په ډول وایو که یو لیکونکی ولیکی چه احمد او محمود سره خپه شوه او یو بل ولیکی چه خوا بدی یا زړه بدی شوه مونږ پوهیږو چه دوهم سړی د پښتو له خپل سبك سره زیات آشنا دی همدارنګه پوریږیکول له پور ور کولو نه د پښتو اصلی تعبیر ته نژدی ایسی، نو د پښتو لغتونو اصلی او مربوطات د پښتو په انشا او ادب کښې مهم مقام لری او همدغه شی دی چه دژ بو په بیلتون کښې یو معنوی او جوهری فارق بلل کیږی ، که یو سړی ډیر کوښښ و کړی چه یوه بله ژبه زده کړی او په دغه زده کړه کښې عمر ونه تیر کړی بیا هم په دغو معنوی او جوهری فرقونو کښې

غلطېږي او دژبې خاوندان ئې پېژني چه پردي دي لکه چه داقصه ډېره مشهوره هم ده چه کوم مشهور ادیب چه په عربي ادب کښې ئې داستاذۍ حق پیدا کړی و مګر مورنۍ ژبه ئې بله وه په عربو کښې داسې معلومېده لکه چه عربي ئې خپله ژبه وي او دمور په غېږ کښې ئې زده کړې ځکه چه ده پخپل کوښښ ډېر زيات عربي لغات او دژبې مخصوص قوانين پوره ياد کړي او په ادبي لطائفو هم ډېر ښه پوهېده : دالفاظو او کلماتو اداا و تلفظ ئې هم خوراصحيح او ټيک و، حقيقي او مجازي معاني، استعارات او کنايات هم ور ته مستحضر او دژبې په سرپا دو چه له عربو نه ئې هيڅ فرق نه کېده مګر کله چه ده په عربو کښې واده وکړ او يوه عربه ښځه له ده سره په حيات کښې شريکه شوه هغې وپېژانده چه دې بل څوک دی او دژبې اصلي خاوند نه دی ځکه چه ده د(اطفاء السراج) په ځای (اقتل السراج) وويل او خپله اصلي محاوره ئې په عربي ترجمه کړله نو ويلې شو چه په هره ژبه کښې ځيني معنوي فرقونه شته چه که څوک ئې الفاظ بدل کړي او معنائې دبلې ژبې په قالب کښې واچوي سړی پوهېږي چه دا مقصد له بلې ژبې اخستل شوی او جامه ئې بدله شوېده، دا رازشيان په ژبه کښې زيات ډېر دي او په ليك کښې ئې خو ندي کول او ساتل دليکوالو مهمه وظيفه بلل کېږي په کوم ځای کښې چه ليکونکی ديوې بلې ژبې له تاثير لاندې وي او په دوه ژبو څه ليکلي شي هلته دغه راز فرقونه او مميزات سړی ښه نشي ساتلی او ورځنې بدلېږي همدغه سبب دی چه دپښتو ځيني ليکوال دسر توريدلو په ځای کښې سر لوڅېدل ليکي او ډېر ځله يو ليکونکی دهمدې لامله چه دپښتو له سوچه او خپلو محاوروڅخه نه وی خبر پرد ی لغات راوړي يعني يو ه داسې سړی ته چه تل په شريسي ګرزي شرير وائي مګر پښتانه دغسې سړي ته په حق کښې وائي چه فلانکی دبلا په لکې سپوردی همدار نګه په داسې ځای کښې چه زمونږ ا کثره ليکوال وائي ډېرزيارمی وکښ او ډېرزحمت مې تېر کړ هغوی وائي داوسپنې نيني مې و چيچلې-

دلته زه دانه وايم چه زيار کښل غلط تعبير دی يا زحمت ګالل او تېرول بايد استعمال نشي ځکه چه دا هيڅ امکان نلري چه يو ليکونکی خپل ټول مطالب په مخصوصو محاوراتو ادا کړي او دهر ی معنا دپاره دپښتو خاصه محاوره ولټوي بلکه داوايم چه ليکونکی دی خوا ته ملتفت شي او دغه راز خوږې خوندوري محاوري چه زمونږ ئې له يوه او بل نه اوروادبي دنيا ته راننباسي او په ليك کښې ځای ور کړي په دې کاربانـدې ديوې ژبې نثراونظم دعامو او خاصو دپاره خوږ والی پيدا کوی او ډېر مقبوليت مومي، په همدغه راز شيانو ديوې ژبې تعبيري اولغوي پانګه او استعداد زياتېږي او هغه خصوصيات چه په هره ژبه کښې ديو ه ملت دذهني او تخيلي ډول نمايندګي کوي خوندي کېږي او دژبې معنوي موجوديت چه له الفاظو او کلماتو نه هغه خوا ځای لري ساتل کېږي زه چه يو وخت د کنړ ښکلې درې ته ننوتم او ددغه محيط مخصوص تعبيرات مې لټول له يوه سړي نه مې واوريدل چه خپله بې ضرري ئې بيانو له او خلق ئې په دې پو هول چه زما هيڅکله چاته ضرر نه دی رسيدلی او هيڅوك مې نه دي آزار کړي، دا مطلب هغه په ډېر ښه بيان او يو لنډه عبارت کښې ادا کړ چه ډېر خوږ او دده له حياتي او محيطي وضعيت سره ډېر مناسب و. هغه هيڅکله دضرر او آزار کلمه په خوله رانه وړه او نه لکه مونږ غوندی

دغسې کلماتو ته محتاج شوځکه چه هغوله پردیو کلماتو اوتعبیراتو سره نه و آشنا اود خپل تخیل خاوندو، هغه هر وخت خپلې غوا ګانې پوولې وی اوضررئې همدغه شی ګڼه چه څوك دچا ملاسته غواپاځوی ځکه ئې وویل چه ماکله دچاملاسته غواهم نه ده پاځولې اونه می دچا کچری توروله دی.

دغه راز مخصوص محاورات د پښتنو په هره خوا کښې شته چه بل ځای ته نه دی رسید لی اودا د نن ورځی د لیکوالو کار دی چه دغسې خوازه تعبیرات له یوه ځای نه بل ته ور سوی او د هغه ځای لیکو نکی ئې دیوه ادبی سوغات په توګه قبول کړی دا باید کومه ادبی مبالغه ونه بولو اوپه رښتیاد پښتو یو سوچه اوخوږ تعبیریوادبی ارمغان وګڼو ځکه چه ادب یو لطف دی چه په وینا کښې ځای لری اودغه راز محاورات له ډیرو لطایفو څخه ډك وی ، ښه می په یاد دی چه زه دیوه پښتانه په حجره کښې میلمه وم اوڅوشپې هلته باران ایسار کړم مایوه ورځ ورته په توکو کښې وویل چه کله کله میلمه په کوربه تاوان اودروند بارشی چه په کوتکوهم له حجری څخه نه اوزی ، هغه وویل چه ستر ګی په بڼو نه درنیږی ، دامختصر جواب و ګوری چه څومره لطف اوڅومره ادبی رمزونه لری ، همدغه شی زمونږ ملی ادب ګڼل کیږی اود پښتو مانۍ په همدغه راز اساسونو ولاړه ده مونږ باید د پښتو له موجوده ادبی مرکزونو دغه ادب راټول کړو او عمومیت ور کړو ، په هرځای کښې د غسې خوازه محاورات اومخصوص مصطلحات شته چه په بل ځای کښې څوك ترینه نه دی خبر د پښتو جمله بندی اود عبارت سیاق هم په یوه اوبل ځای کښې فرق کوی چه د عمومی سبکونو تعدد او اختلافات ترینه ښکاریږی، په یوه خوا کښې لیکوال لیکی : (دمثال په ډول) زه هغه سړی رابلم کوم چه تارابللی و په بله خوا کښې ویل کیږی: هغه سړی چه تارابللی و زه ئې هم رابلم - همدارنګه په یوه ځای کښې وائی پرملا سبق وائی اوپه بل ځای کښې ارو ۰ له ملانه سبق وائی څوك لیکی چه دده په مخکښې دا خبره تیره شویده اوځینی وائی دده دمخه اوداسې نور... همدغه شان یو لور ته خلق دیوه کار دغښتلو یا ضرورت مفهوم په دی ډول ادا کوی(زه ددی خبری ښکاره کول غواړم-زه په دی مطلب پوهیدل غواړم- څه خو کول په کاردی-دی ښکلی منظری ته کتل په کاردی اوداسی نور ...) مګر په یوه بله خوا کښې وائی زه غواړم چه دا خبره ښکاره شی یاښکا ره کړم - دی ښکلی منظری ته باید و ګورو یاو کتل شی - څه لیکونکی لیکی (پدی باندی پوهیږم ) ځینی نور بیا وائی (په پو هیږم) همد ارنګه (په کوردی) (په کور کښې دی ) (نشی کیدی) (نه کیږی) اوداسی نورداډولونه د پښتو دموجوده مرکزونو په عمو می اومشتر کو سبکونو کښې بیلتون ښکاره کوی اولیدونکی پوهیږی چه دپښتو په کښتا بونو او آثارو کښې دری رنګه لیدل کیږی که مونږ دغه دری مختلفی نمونې په مبهم اومجمل ډول راوړو چه دلیکو نکی نوم اوځای ونښیو بیاهم پوهیږو چه دانمونی د کوم کوم ځای دی اوڅه څه فرق و نه لری دمثال په ډول پدی لاندی نمونو کښې غورو کړی، چه په رنګ او آهنګ کښې ئې څومره توپیر لید ه شی .

دلمړی رنګ نمونه : ړوند هلك :

هاراته وواياست هغه چه رونهائی بولی څه شی دی؟ هغه چه مائی کوروټ خوند نه دی کتلی ، دلیدو

ښیګړی څه دی ؟ هاووایاست دغه بې وزلی هلك ته تاسی دهغو ښکلیو شیانو خبری کوی چه وینی ئې تاسی دلمرخرك پلوشی وینی زه ئې تش په تود وخه پوهیږم ، خونه پوهیږم چه دغه رونه روح یاشپه څنګه جوړ وی ؟ ـ زه خپله روح او شپه پخپله جوړوم هغه وخت چه بیدیږم یا لوبی کوم ـ زه ډیر ځله اروم چه په سرو او سیللو تاسی زما پر بې وزلی ویر کوی خو زه دا ټوله په صبر پر ځان ګاللای شوای نو زه دا نشوای کولای چه د خپل زړه خوښی ور که کړم په دی ترڅ کښې زه داسی سندری اولم چه زه پاچا یم که څه هم یو بې وزلی ړوند هلك یم ۰

بله نمونه : یوه ژبه چه په ادبی ښیګړو او ګینو ښایسته کیږی دا ګینی بایدددی خپلی وی او څو مووس وی بویه چه مونږ خپله ژبه هم پخپلو ګینو ښکلی کړو په پردو پسو لو او ښکلو کالو کو رټ ناوی نه ښایسته کیږ ی ۰

پښتانه وائی پردی شی نیمه خوادی داخبره ډیره پخه خبره ده پردی ښیګړی د هیچا نه روزی کیږی زمونږ ژبه ځانله بیل رنګ بیل خوند بیله جواه او پښه لری داسی پسول ورته ښائی چه ددې خپل وی او ترا بده ښه په وایسی نو که مونږ پردی ګینی او پسو لو نه په ځړوو دا ښایست ئی یو څوورځی دی بیر ته داپا تېږی او خپل رنګ وخوند ۰

دادوه نمونی دیو ځای دډیر پیاوړی لیکونکی انشائی نمونی دی چه په هغه خوا کښې ده غوندی بل مقتدر لیکونکی نه دی ښکاره شوی او په خپل سبک کښې لمړی سړی بلل کیږ ی ۰

ددوهم رنګ نمونه : هغه وخت چه زه ماشوم وم دشپی به په تیاره کښې ویریدم مګر په رڼا ورځ به راسره هیڅ ډاراوویره نه وه ، ما ګمان درلود چه ټولی بلا ګانی دشپی په تورتم کښې وی او په رڼا ورځ هیڅ نشته تر څو چه زه کوچنی وم او پخپلو پښونه وم دریدلی ما په ټولو بنیادمانو د خیر ګمان درلود او بیله روو ، شیشکو ، لیوانو او پیریانو بل څوك را ته دشر او ضرر خاوند نه ښکاریده ، زه پدی نه پوهیدم چه ځینی انسانی منګولی په بیرحمی کښې دلیوانو له پنجو نه په کمه نه دی ، ما ته دانه وه معلومه چه د انسان داخوزه ژبه کله په زړونو باندی داسی ترخه زهر دوړوی چه تریخوالی ئی تر قیامته پوری هم نه ځی ۰

نه پوهیږم ما ته چا و ویل چه ته ښه او بد بیل کړه او هر چا ته په یوه نظرمه ګوره ! دغسی وینا خو زمانه یادیږی چه ما به له چا اوریدلی وی مګر وروسته له ډیرو تجربو دا مفهوم زما په زړه کښې لیکل شوی و ، چه زما ویده فکرئې را پاڅاوه اوزما سترګی ئې پرانیتی ۰

ددریم رنګ نمونه : څه موده شوی وه چه ما د خپل مشرورور امیرخان لالالور خپل ځوی له کوژدن کړی وه او زمالور دهغه ځوی له ، یو ورځی ماورته ووې چه خپلې خپلی حیا به پخپل کور کړو ، هغه وی ډیر به ښه وی پدی غرض دجوړو اخستو دپاره په یوه دکان کښیناستو اودملکی جوړو اخستو ته خبری مو کولی ، په دکان یو سړی وو ی چه ډیر ښه کوی ، ولی جوړو اخستو ته څه ضرورت دی ، دادشریعت کاردی ډیر خلق به داسی وی چه دهغوی به دجوړی اخستو لاس هم نه رسی ـ مونږ

په ستنه لاړو دشپې ماخپل قام خپل کورته راوغوښته اودهغوی په وړاندې ماټول حال تېر کړ قوم جواب کېښې ووی چه د کوم نیك کار بنیاد ږدی، زمونږ قبول دی سباوختی مونږ د کلی خلق ددې شرعی کارنه خبر کړه شکر دی چه دی غیرتمند و کلی والو زمونږ سره اتفاق وکړو اوداسلام مبارك حکم ته ئې غاړه کېښوده بله ورځ مادخپل خوی ووليږ درور د کورنه راوړه په اغوستو جامو کېښې اوپه هغه ساعت کېښې ما دخپل کورنه په اغوستو جامو کېښې ووليږ خپل وروړ کړه ولېږله، پدی منځ کېښې دبل کلی یوسړی خبرشو اوراغی چه زمونږ په کلی کېښې دهغه د خوی کوژدن شوی وه د کلی مشرانو حکم وکړ چه شریعت دتمامی دنیا دپاره دی پدی وجه دده دخوی ووليږ هم یودم ایښتل په کار دی دهغه کلی جرګه دې راشی نوبیا ووليږ ور کړی، دجرګی مشران راغله اودهغوی نه صرف داشرط واخستی شو:- صرف یوه روپۍ به دخپل کلی مدرسی لپاره دچندی په طور ور کوی، جوړه اوبل څیز بهانه اخلی، واړه شیطانی رواجونه یو قلم بند.

اشعه د اچه په ډېر زور سره دا نیك کار شروع شوا ودټولی علاقی قریب پنځه زره ووليږ لاړی راغلی ددې دری رنګو په نمونو کېښې به تاسی ته پته لګېدلی وی چه په پښتو کېښې دغسی دری مشترك اوعمومی سبکونه شته چه هر سبك ډېر لیکونکی لری اویوله بله ښکاره فرق لری چه که په یوه جامع اومانع تعریف هر سبك نشو بېژندلی په ادبی ذوق اوشعور خو ئې پېژنو اوپوهېږو چه رنګ وخوند او آهنګ ئې بل راز ایسی چه دغه دی دلته ئې څه نه څه تغیرو نه شیو :

دلمړی رنګ په نمونو کېښې دا کلمات : وواياست ، رونیا، کورټ، رونه، روځ، بیدېږم، تولې، ګاللای شوای ، نشوای کولای ، ترځ، سندری اولم- ګېږی پسول، وخرو، پاتیږی، ددغه سبك په تشکیل اوموجودیت کېښې څرګند تاثیر لری اوهم دا رنګه په دی کلماتو کېښې به وایسی په وخرو، زماړه بی وزلی، (په) او (ړی) که څه هم په ظاهره کوچنی معلومېږی مګر دسبك په بېلتون کېښې ئې اغېزه خورا ډېره ده.

ددوهم رنګ په نمونو کېښې دا کلمې :- وېربدم ، رنیا، ورځ ، بلا ګانې ، دوړوی ، ویده پاخاوه، پرانیتی لهٔ لمړی سبك نه خپل سبك بېلوی څکه چه هلته (بیربدم- رونیا، روځ، بلا وې، پاشی، بیده، وپاخاوه، وپرانیتی) راځی اوځینی نور لغتونه ئې لکه: پښی، دربهٔلی ، وویل، درلود، ژبه - لهٔ دریم سبك نه هم ځان بېلوی، ځکه چه په هغه سبك کېښې خپی، ودربهٔلی، ووی، لرلو، جبه- ویل کېږی یاویلی شی. په دریم سبك کېښې هم داالفاظ: (کوژدن کړی وه، ووی، دجوړو اخستلو لاس نه رسی ، په ستنه لاړو، دهغوی په وړاندی، ایښتل په کار دی اوداسی نور.... خپل سبك جلا کوی اوبېل رنګ ورپوری منبی مګر دلته بایدداهم ووایو چه په دریم سبك کېښې دپښتو له خوږو اوخپلو محاو راتو زیات کار اخستل کېږی اوهماغه څه چه مونږ ورته دپښتو په ادب کېښې ډېر اهمیت ور کوو دلته ئې ډېر وینو، داخبره زه یوازی دهمدغی نونې په استنادنه کوم ځکه چه دلته لا دومره ډېر دا کیف نه لیدل کېږی اودانمونه محض داختصار دپاره غوره شوېده هسی نه چه دادډې سبك بهترینه یاډېره

ممتازه ټوټه‌ده پدی‌سبك کښې‌دپښتو دخوږو محاورو اوخوندورو تعبیراتو په لحاظ ډېرې خوږې او غوره نمونې پیدا کېږي لکه چه‌په هغونورو سبکونو کښې دپښتو ځینې نو ر مزیتونه ډېر لیده شي‌اود گرامریا فقه‌اللغې له‌خواډیره ترجیح لري ، که‌پدی دری سبکونو کښې‌د «خذ ما صفاد ع ما کدر» په‌اساس څه واخستل شي‌اوځه ردشي یعنی یوعمومي اومشترك سبك‌ورنه جوړشي چه‌په هره خوا کښې ومنل‌شي دابه‌دپښتو یوادبی تکامل‌وی اوټولو پښتنو به ددې ژبې ادبی خدمت په‌ځای کړی وی . زه‌دلته دانه‌وایم چه‌دټولو لیکونکو لیك‌دی ښځی یورازشي اوهیڅ فرق‌دی ونه‌لري ځکه چه دا کار په‌هیڅ ژبه‌اوهیڅ‌ځای کښې‌نه‌دی شوی اونه کېږی هرلیکونکی ځانته یومخصوص سبك لري چه هغه لکه‌دده رنگ اوښه په‌ده پوري اختصاص لری‌زه غواړم چه‌په یوه ژبه کښې خوژبې جوړی نشی اوپه‌بېلوبېلو لارورو‌ان نشو . مونږدپښتو داوسنی نهضت په‌دوره کښې شایسته ډېرپښتنگان گورو چه دغې رنباته خپله ښتا بې شکاره کوی او هریو له خپل ذوق او شوق سره سم څه چه کولی شي دپښتو اوملی ادب دلوړ تیا دپاره‌ئې کوی خوك‌نوی تا لیفونه کوی ځینې نور مفید اوښه کتـا بو نه ترجمه کوی ، شـا عران ښه ښه شعرو نـه وائی او نثر لیکو نـکی پښتـا نه ښه ښه مضـامین په پښتو لیکـی پدی کښې هیڅ‌شك‌نشته چه دغه راز خدمتونه د پښتو ژبې دعلمی اوادبی ذخیری‌په پیدا کولو کښې ډیر اثرلری مگر څومره چه دمنثوروآثارو په‌زیاتولو کښې کوښښ شویدی هغومره دشریه‌ښه‌والی اودپښتو دسبك په‌تعمیر او جوړښت کښې فکرنه‌دی شوی مونږ ځنی داسی لوی لیکونکی اونوموړی لیکوال لرو چه ډیرڅه‌ئې لیکلی اود تالیف وتصنیف خاوندان دی‌چه هغه تالیفات اوتصانیف دپښتوله‌خوراضروری او مهمو اثارو څخه گڼل کیږی اودوی‌ته لوی‌حق ور کوی مگرپخپلو دغو لوړو خدمتو کښې ئې دنثر اوسبك‌پالللو خوانه دومره ډیره‌توجه نه‌ده کړی دهمدی‌لامله دخپلو ادبی مشرانو په‌لیك کښې هم‌ځنی داسی جملی وینو چه‌دپښتو له‌حنجری سره نااشنااپسی اوله‌دی‌سبکه‌وتلی معلومیږی ددغسی جملو ځینې نمونې دادي : ـ

(۱) باید هلـك ته په تلمیذی محیط کښې دواجب پرشعور تمرین ور کړ شي او دعمومي مفاد په‌چو کې کښې ناستو کسانوته هم باید په دغه موقع کښې دو اجباتو اهمیت تر غوږه شي (۲)ښه‌خوله دی‌غیردهغو افرادوڅخه چه‌حقیقتاً ئې‌ودوی پری ـکړی ( ۳ )ځانته پر ټولو مشکلاتو اوسختیو باندی بری ور کوی (٤) پرځان دویسا ښښتن‌نه‌و (٥) ددوی الهام دفطرت له‌پلنی لمنی څخه‌وی (٦) زه‌تا ددې نجلی مړوښې او مزاوجت ته‌را بولم .

پدی‌جملو کښې لمړی جمله‌چه ټول کلمات‌ئې‌عربی‌دی اوپه اولس‌اتلس کلمو کښې‌بی‌له‌دوه درې کلمو پښتو الفاظ نشته او دژبې ډیر لغوي فقر ښئې تر کیبی ډول یې هم دپښتو نه‌دی زه دلته په‌همدغه ټـکی‌اعتراض ارم چه‌ولی پدی جمله کښې د کلماتو تالیف بل‌راز ایسی لغات که له‌یوی‌بلی ژبې هرڅومره واخستل شي مگرپه پښتو کښې ما نوس وی او عامه طبقه پری پوهیږی

څه پروانلري پدې شرط چه ترکیب ئې پښتووي پدې عبارت کښې خومره چه تلمیذي محیط دواجب پرشعور تمرین ور کول نااشنا ایسي هغومره دعمومي مفاد په چوکې ناست کسان هم یوعجیب تعبیر معلومیږي که ښاغلي لیکونکي داخبره پدې ډول کړې واي ( باید هلکان ته په ښوونځي کښې د واجباتو دپیژندلو شعور پیدا شي اوهغه څوك چه دعمومي مفاد په چوکۍ ناست دي باید دواجباتو په اهمیت وپوهیږي ) ښه به و ، دوهمه جمله کښې زه ښه نه پوهیږم چه دلیکونکي خیله محاوره ده ته څومره اجازه ور کوي ماخوخوله پریکول په داسې ځایو کښې اوریدلي چه سړی د حق ویلو په ځای کښې چاته څه سختې خبرې و کړې او یوادبي شجاعت ښکاره کړي یعنې مطلقې خبروته خوله پریکول نه وائي چه سړې ښه خوله پریکول د ستاینلو په ځای کښې استعمال کړې او ووائي چه هرچا ته باید سړی ښه خوله پرې نکړي .

ځائنه په مشکلاتو برې ور کول هم ماته دپښتو خپله محاوره نه ایسي دلته باید سړی داسې ووائي چه پرتولو مشکلاتو خپل برې غواړي .

پرځان دویسا ښتن نه و زما په نظر بلراز تعبیر راغی ځکه چه عموماً داسې ویل کیږي چه پرځان ئې ویسا نه درلوده .

لمنې ته پلنه لمن ویل هم بنایي چه دپښتو محاوره نه وي ځکه چه له لمن سره عموماً لویوالی او ارتوالی استعمالیږي اومناسب هم ایسي .

مړونې ته رابلل هم دومره نااشنا تعبیردی چه هرپښتون پرې نشي پوهیدلی ،

دغه راز ځینې نااشنا تعبیرونه دپرلیدل کیږي مګر سړی ښه نه پوهیږي چه دا به زما بېخبري وي او که دلیکونکي سهوه او بې پروائي مثلاً یو تن لیکي (هغه سړی ته لوړ ګوري چه ...) مطلب ئې دادی چه دعزت په نظرورته ګوري لکه چه په درنه سترګه اوپه ښه سترګه کتل په پښتو کښې همدغه معنی لري او ( لوړ ګوري ) په داسې ځا کښې ویل کیږي چه لیدونکي دچا په مقابل کښې څه خجالت نلري بلکه لا څه سر فرازي لري لکه چه ( ټیټ کتل ) بالعکس دلیدو نکي په خجالت اوقصور دلالت کوي اودلوړ کتلو په مقابل کښې استعمالیږي نو ددغسې محاورو او اصطلاحاتو ځېرنه په کار ده چه باید له اشتباه څخه واوزي اوحقیقت ئې څر ګند شي .

دیوې ژبې په لیك او تحریر کښې داخبره ښه نه ایسي چه دوه لیکونکي له یوې محاورې یالغت څخه لیرې بلکه تقریباً متضاد معاني واخلي اودهرې معنی د پاره په ژبه کښې بیل بیل الفاظ هم وي په یوه مقاله کښې مې دیوه مشهور لیکونکي په لیك کښې ولیدل چه مقصد ئې زړه ور کول او په چا باندې مینېدل و ، مګر لیکلي ئې وچه(زړه ور غورځوي ) ښائي چه دا به دهغه محاوره وي مګر نور پښتانه زړه غورځول په بله معنی اخلي او په داسې ځای کښې ئې استعمالوي چه هلته یوسړی دچاله خوف او ویرې خپل فکر او استقامت له لاسه ور کړي او دډار وهم پرې غلبه و کړي .

ځینې لغات هم شته چه په یوه ځای او بل ځای کښې ډېر معنوي فرق بښئی لکه ( ړنګر ) چه ځینې پښتانه ئې دغو یې په معنی اخلي او ځینې نور له دغې معنې هیڅ خبر نه دي او بې له دینه چه څوک پرې خپه شي یو بل ته وائي چه ولې دومره ړنګر شوې یا ډېر ړنګرئې ځکه چه دوی ور ځنې تنها د ( لاغر ) معنی اخلي نو همدغه یو لفظ دی چه هلته عیب او ښکنځل دی مګر دلته په غمخورۍ او زړه سوي دلالت کوي ،

دلته بنائي څوک ووائي چه په ځینو نورو ژبو کښې هم ځینې دغسې الفاظ شته چه دوه متضادې معناوې لري لکه په عربي کښې چه ( قرء ) د طهر او عدم طهر معنی لري نو څه کیږي که په پښتو کښې هم دغسې کلمات موجود وي ، د دغسې پوښتنې په جواب کښې سړی ویلی شي چه په یو ژبه کښې د افهام او تفهیم په لحاظ یا د ادبي روابطو قایمو لو دپاره د دغسې کلماتو استعمال چه یو د بل په طرز تلقي خبر نه وي ښه نه ایسي نو که دا راز لغات په ژبه کښې د ځایو نو د اختلاف کبله موجود هم وي باید په عمومي او مشترک سبك کښې یو اصلاحي صورت او متعارف مفهوم پیدا کړي او داسې ونشي چه ته به د همدردۍ اظهار کوې او هغه به ئې ځانته کنځلې ګڼي .

په دې ټولو خبرو کښې مقصد دا دی چه د پښتو لیکونکو ترمینځ دغه راز معنوي یا لفظي ادبي نا اشنائي ور که شي او یو داسې عمومي سبك پیدا شي چه په هره خوا کښې خپل و ګڼل شي . یعنې داسې نه وي چه یو تعبیر په یوه خوا کښې فصیح بلیغ خوږ او خوندور وي مګر په یو بله خوا کښې اروېدونکو ته بېخونده بلکه غلط معلوم شي ، په یو ځای کښې یوه کلمه مذ کره استعمال شي او په بل ځای کښې مؤنثه وي لکه چه په ډېرو جملو کښې سړی ته دغه راز فرقونه تر سترګو کیږي مثلاً د یوه ځای لیکونکی لیکي چه ( سوړ سائې ویوست ) مګر نور لیکوال (سړه سا ) وائي او په تانیثي ډول ئې استعمالوي همدارنګه یوه لور ته وائي (یوه ګړۍ تېره شوه ) او بل لور ته ویل کیږي ( یو ګړی تېر شو ) دغه راز اختلافات په یوه ژبه کښې جایز نه معلو میږي او ډېر ضرورا یسي چه په لیك او تحریر ( ادبي سبك ) کښې یو صورت غوره شي .



# لغات فراموش شدهٔ پښتو

نویسنده ښاغلی سید مسعود خان

درین عصر فرخنده که زبان پشتوی ما باقتضای ناموس تکامل وارتقاء و ایجابات ظروف قدم درساحهٔ نهضت واعتلا نهاده برهر فرد افغان ودوستداراین زبان واجب است که درین زمینه بقدر مقدور ازهرچه میسور باشد کمك وهمراهی کند تا به فضل وتائیدات آلهی باقدم های سریعتر بمنزل مقصود زودتر ونزدیکتر برسد وزبان عرفانی شود. درسائقهٔ همین وجیبهٔ ملی من هم با کمال بی بضاعتی دریکی ازمباحث پشتو پېژی (۱) که ترجمه اعلام است داخل مطالعه و تدقیق شده عدهٔ از اعلام قدیم وحدیث پشتورا هم ازقسم نامهای اشخاص هم ازقسم اسماء امکنه وبقاع وامثال آن با کمال بی بضاعتی ترجمه کرده بمعرض مطالعهٔ خوانندگان محترم سالنامهٔ گرامی میگزارم. پیش از شروع بشرح موضوع پارهٔ گفتنی های لازم راجع به زبان پښتو که مبدأ و اساس فن پشتو پېژی است بطور مقدمه گفته میشود.



ښاغلی سید مسعود خان

❀ ❀ ❀

زبانها ازحیث ثروت و لغات ، انوع اصوات قواعد صرفیه و نحو یه وحتی ازنقطه نظر بنیهٔ اساسی باهم اختلاف دارند مقدار لغات دریك زبان هرقدر بیشتر هم باشد اصول لغات دران خیلی کم می باشد ؛ اکثر لغات ازیك دگر یا ازیك اصل مشترك مشتق شده اند تدقیقات لسانیه نشان میدهد که ریشه ها و مواد اصلیهٔ زبان انگلیسی عبارت از (٤٢٢) لفظ است ریشه های زبان سنسکریت از (۱۲۰) اصل بیشتر نیست ولی کثرت لغات آن باندازه ایست که در المان یك لغت سنسکریت درهفت جلد بزرگ نوشته شده است

ریشه های زبان های مختلف چون باهمه گر مقایسه شوند بسیاری از آنها مشترك ومشتق از اصل واحد دیده می شوند ازین نقطهٔ نظر گفته می شود که زبانها بدرجات وصور مختلف قرابت اشتقاقی

(۱) پېژی بمعنی شناسی ومرادف (لوژی) است، اصل آن کلمه پېژه یا پېژه می باشد که از (پېژندل) بمعنی شناختن ساخته شده است ومعنی پشتو پېژی مباحث متعلق به زبان پشتو یا پشتو شناسی است

دارند وبرهمین اساس علمای زبان لسانهای معروف را به خاند انها ونژ ادها تقسیم کرده اند چنانچه ازروی آن زبان فرانسوی، اسپانیولی، ایتالیائی و.... از شعبه های زبان لاتیني وهمه از خاندان لاتیني می باشند المانی، انگلیسی، سکاندیناوی و.... ازشعبه های زبان جرمن وهمه از خاندان جرمني می باشند زبان روسی لهستاني، سروی و ... ازشعبه های زبان سلاو وهمه ازخاندان سلاوی می باشند این سه خاندان زبان بازباهم قرابتی دارند وتمام آنها بازبان یونان وخاندان ایرانی وخاندان هندی از زبانهای آسیا قرابت وشراکت دارند. بنابران تمام لسانهای مذکور اولاد واحفاد زبان قدیم آریا گفته میشوند همچنان عربی، کلدانی، عبرانی، سریانی، فینیکائی و.... باهم قرابت دارند وهمه از جملهٔ (السنهٔ سامیه) می باشند ـ زبانهای ترك، چغتای ، تاتار، مغول ، مجار در اروپا و .... دارای قرابت باهمی بود همه از جمله (السنه تورانیه) می باشند ـ خلاصهٔ آن که مطابق به عرف امروز زبانهای ممالك متمدن ونیم متمدن به سه نژاد آریائی، سامی وتورانی تقسیم شده اندونژاد آریائی به دوشاخ اروپا وآسیا منشعب گردیده، وشاخ آسیائی آن به دوخاندان هندی وایرانی تفریق شده است .

ازخواندن بطور فوق بخاطر هر کس این سوال خطور می کند که زبان پشتو از کدام نژاد السنه است ودران نژاد به کدام خاندان نسبت می شود؟ درین موضوع اقوال مختلف بسیار از هرطرف گفته شده ومی شود مگرغالب آن اقوال گفته های کسانی است که صلاحیت اظهار فکر درین زمینه نداشتند یاندارند چرا که زبان شناس نبودندو نیستند وهم ازپشتو اطلاع درستی ندارند زبان شناسان دانشمند که باپشتو تماسی پیدا کرده اندبرین عقیده اند که زبان پشتو ازنژاد السنهٔ آریائی است امادرتعین خاندان آن افکارشان مختلف است چندنفر پشتورا ازخاندان ایرانی میدانند و چندنفر از خاندان هندی واشخاص قرابت آن را باهردوخاندان نشان میدهد قول اخیر به حقیقت نزدیك تراست چرا که مهاجرت جمعیت شرقی آرین ها یاقبائل هندواروپائی بطرف شرق و کذامهاجرت دستهٔ دیگر آن نژاد به طرف غرب ازخاك باختر وافغانستان بود بنابران السنهٔ افغانستان باالسنهٔ هردوخاندان مذکور قرابت دارند برای توثیق این معنی بخاطر ونیز پیدا کردن سراغ خاندان پشتوبه نظریه پروفیسر مار گنسترن زبان دان معروف ناروی ژی که درسطور ذیل مختصراً نوشته میشود خوب غور وتوجه باید کرد. درسنه ( ۱۹۲٤ ع ) پروفیسر مار گنسترن به امر «انجمن تحقیقات مقایسهٔ تهذیب بشری » به افغانستان آمده بود ومدت هفت ماه به مطالعه لهجه های مملکت ما پرداخته ونتیجهٔ تحقیقات خودرا بصوت رساله دراروپا نشر کرده است وخلاصهٔ آن را شاغلی کهزاد ترجمه ودرشماره نهم سال دوم مجلهٔ آریانا اشاعه نموده است پروفیسر مشارالیه می نویسد « مطالعهٔ لهجه های آریائی که دردره های هندوکش وجود آن ازبین نرفته برای مطالعهٔ زبانهای آریائی یکی ازغنائم قیمتدار علمی می باشد

افغانستان ازنقطهٔ زبانهای آریائی اهمیت بسزادارد زیرا گهوارهٔ آرین درسلسله ورشتهٔ کوه های متصل آن قرار دارد بناً علیه هندوکش برای تحقیقات فیلو لوژی مقایسوی مانند زمین موعودی بنظر میخورد وچون لهجه های مجهول هند واروپائی دراینجاهنوز حرف زده میشود

مطالعهٔ آنها ازهررهگذر جزءواجبات علمی بشمار میرفت خلاصه افغانستان ازنقطه نظر جغرافیائی که دارد برای مطالعات زبان دارای مقام واهمیت فوق العاده می باشد - لهجه‌های مختلف ومتنوع دراینجا موجود است اقلابیت لهجه‌درداخل این مملکت حرف زده میشو د - افغانستان مرکزالسنهٔ ( ایورا زی ) یعنی قطعهٔ آسیا واروپا ست وتقریباً تمام خانواده های بزرگ السنه در اینجا حرف زده می‌شود ·

زبان پښتوهم درخانوادهٔ السنهٔ آریائی زبان مهمی است که بااین خاندان قرابت بسیار نزدیکی دارد وبسیاری از کلمات قدیم پشتورا آثار زبانهای مذکور حفظ کرده اند ، و برای جمع نمودن کلمات قدیم پشتو آثارمذکورازمنابع مهمه‌است . میان پښتو والسنهٔ اروپائی هم‌قرابت بسیار نزدیکی‌است ریشه های زبان‌پښتو و کلمات آن دران‌زبانها بسیاراست‌برای تکمیل ریشه های پشتو وتصحیح آن فرهنگهای فیلولوژیائی السنهٔ مذکور کمك زیاد میرساند وفایده های بسیار دیگر هم‌ازان هابدست می آید · فن « پشتوپیژی » باید براساس های فوق و ضع شود وتمام مباحث متعلق به‌پشتو برطبق آن مطالعه‌و تدقیق وفنون ادبیهٔ پشتو بروفق آن ، ترتیب شو د ·

یکی ازمباحث پشتو پیژی ترجمهٔ اعلام قدیم وحدیث پشتوست که متضمن فوائدزیاد لغوی ، گرامری ، جغرافیائی ، تاریخی ، روحیاتی وغیره می‌باشد ·

ترجمه‌های بعض‌اعلام روشن‌است وازبعض قدری‌تاریك وامیدمیرود که ازطرف دانشمندان آن‌تاریکها وسائر نقائص مبدل به‌روشنی ودرستی شود و من‌الله‌التوفیق

## ۱- آریا (۱) ( مم لـ ف س )

نام‌مردان‌است‌ونیزاسم‌یك قوم‌قدیم‌ومعروفی‌است که‌غالب‌اقوام آسیا واروپابه آن‌منسوب‌میشوند· اساس بنای اسم ازلفظ (آر) است وآردرپشتو بمعنی‌بنیان ، اساس وقاعده است بنابران آریا بمعنی‌بانی ومؤسس میشود ، ونیز آربرطبق اصول‌تبدل حروف درپشتو بدل از(وار) می‌توان شد واین کلمه متضمن معنی قوت ، توان ، اقتدار ، رسائی ، علو و نظائر آن‌است ·

بمعنی زراعت هم شده می‌تواند چنانچه (اړه) یك شق آسیارا گویند وهم‌منقلب کردن‌را درسنسکریت آریه بمعنی شخص بزرگ وباعزت است وآریه اسم قوم‌قدیم معروف بمعنی دهقان وپرورندهٔ‌مواشی ترجمه‌شده‌است‌بالجمله معنی· لغوی‌اسم آریا چنین میشود آریا · مؤ سس ، بانی- شخص بزرگ ومحترم - توانا ، شجاع - کاشتکار ، مواشی پرور· اساسی ، بااصل ، بابنیاد ·

---

(۱) شپږبون نومېده ، دقندهار په‌لوری پښتون‌وه ، دده دوه زوی‌وو یو کندیوزمند د کندنه دوه‌زوی پیداشول یوخشی دوم‌غری دخشی دری زوی‌وو یومند دویم ملك دریم ترك دمند دوه زوی‌وو یوعمریو یوسف‌دیوسف پنځه‌خوی‌وو یویکښې آریانومیده ازبس‌چه ډیرمتکبر اومغروروو بادی به‌ئی باله اوس‌ئی هم اولادته بادی خیل وائی ( تاریخ مرصع )

## ۲ - آغر ( مم ف س ) (۱)

اسم رجال‌است وازلفظ (آغ)یا (اغ) بناشده‌است ازمشتقات آغ کلمهٔ آغلی مانند شاغلی بمعنی دلخواه، مرغوب، محبوب، ستوده ومحترم‌ست چنانچه آغله درین‌بیت عبدالقادر خان ختک پەلاری تللم پەمخه راغله + پەمخ ترکله شایسته آغله (اوغم) بمعنی مباهات وافتخارو (اغوړ) بمعنی انتقام ، و( آغر ) بمعنی تیر به کمان بر کشیده یاتیر حاضر و آما ده برای انتقام کشیدن ازدشمن ازمشتقات‌ریشهٔ آغ‌ست وبظن‌غالب که کلمهٔ آغاهم ازلفظ آغ بنایافته ، ودرلهجهٔ‌ایران آقاشده است . ونظر بەسجایای ملی‌شخصی که‌ازدشمن انتقام بکشد درنظر همه سربلند ، محترم ومورد ستایش است . بنابر مذکور معنی لغوی اسم‌چنین می‌شود .

آغر آماده ، مهیا ـ دشمن افگن ـ منتقم ـ سربلند ـ مباهی .

## ۳ - ابر ( ف ف س )

ازاعلام رجال‌ست واساس بنای آن لفظ (اب) می‌باشد .

این‌لفظ که‌صورت محدود آن ( آب ) است ، قراراصول تبدل‌حروف در پښتو اصل آن (وو) یا ( واو ) است و کذا ( او ) و ( آو ) و ( اپ ) و ( آپ ) و ( اف ) و ( آف ) نیز بدلهای‌همان ( وو ) و ( واو ) است‌ودرزبان پښتووزبا نهای هم نژادآن بعضی‌ازانها بصورت ریشه‌وبعضی به‌حال‌جزء درالفاظ مرکب‌وبعضی بطورمستقل‌دیده‌میشوند ازمقار نه میان کلما تیکه دارای‌آن ریشه‌ها می‌باشند واضح‌میشود که‌ریشه‌های مذکور مبدأ معانی علو بزرگی وفروغ و اشباه‌آن می‌باشند چنانچه ( وروه ) یا ( واوره ) بمعنی‌برف چیزی‌ست که ازبالافرو میریزد . ( اوه ) بمعنی‌آبله چیزی‌ست برجسته‌ومشتمل برآب ( اوخر ) یا ( اوخار ) بمعنی عیان وآشکار مکشوف‌ونما یان‌است وبنای‌آن‌از ( اوخ ) ست که‌بمعنی اوج‌ست دراوستاپا تفاسیرآن ( اوچ ) هم‌بمعنی‌اوج‌است ، ازینجا واضح شد که ریشه ( اوخ ) و ( اوچ ) و ( اوج ) که ( او )است متضمن‌مبدأ معنی‌بلند ، عیان‌ومکشوف است‌ونظر به‌آن ریشهٔ ( اب ) یا ( آب ) که بدل آن‌است بمعنی‌وجه ، روی‌و مکشوف می‌توان‌شد چراکه‌روی قسمت‌نمایان ومکشوف جسم انسان‌ونیزقسمت عالی‌وعمدهٔ آن‌است حتی‌ازذات شخص‌به‌آن تعبیرمیشود ، چنانچه‌در ( ابلوخ ) بمعنی بر هنه‌رو ، لفظ ( اب ) بمعنی روی است ونیز ( آب ) بمعنی‌آبر وو عزت و حرمت کلمه پښتو است واز ( آب ) یا ( اب ) بمعنی‌روی گرفته‌شده چنانچه‌وجاهت ووجیه درعربی ازوجه‌ما خوذاست . واز

(۱) دربین قوس رموزحرکات یعنی (ف) فتحه (ك) کسره (س) ساکن (مم) الف‌مددار (ز) زورکی (ض) ضمه (مع) و (مج) واو یا یای معروف وواویایای‌مجهول میباشد ،هرگاه(ف) دیگرهم باید حرف منظم باشد ، مثل (فف) (فض) بمعنی فشار برفتحه وفشار برضمه است .

همین ریشه ( اب ) کلمهٔ ( ابل ) بمعنی مکشوف وعریان ساخته شده است چنانچه در( پښی ابل ) بمعنی برهنه پا . ( آس می ابل دی ) اسپم بی نعل است ۰ ( او ) در پهلوی بمعنی تاج شاهان است که فوق سر گذاشته میشود ودرپښتوازان ( اوسر ) یا ( اوسار ) بمعنی افسار ومجازاً بمعنی مقید و مطیع ساخته شده است ۰ ( آو ) در پښتو و پهلوی بمعنی آب است لیکن در پښتو عموماً بطور جز . در مرکبات استعمال میشود چنانچه در ( سالاو ) آبیکه از سرهای کوه فرودمی آید ۰ سال بمعنی سرست چنانچه در ( سالو ) پارچهٔ که زنها برسر بطور حجاب استعمال می کنند . ( ابه ) و ( اوبه ) وگاهی ( آب ) بمعنی آب است و ( آپ ) دراوستا بمعنی آب است و آن چیزی است که از بالاو ازجبال فرودمی آید ومایهٔ حیات حیوانات ونباتات است ۰ اور ( Ouer ) وآپ ( up ) درانگلیسی بمعنی بالا ی ، فو ق روی می آید ۰ نظر به شواهد فوق معنی لغوی اسم چنین میشو د ۰

آبر ( ف ف س ) شخص با وجاهت ، آبرومند ، محتر م ۰

## ٤ـ آتمر (ف س ف س)

ازنامهای رجال وبنای آن از (آت) و(مر) است. ات بدل (وت)ست که مفهوم آن بر جسته وریشهٔ مصدر وتل بمعنی برآمدن وطالع شدن است ، مرمخفف (نمر) بمعنی خور شیدست بنابران معنی لغوی اسم چنین میشو د ۰

آتمر، شمس طالع ، مهرنیمروز- عیان، آشکار- نمایان- بزرگ- عظیم- باشکوه - با جلال - سرافراز ، سربلند ۰



## ٥ ـ اَخك (ف ف س )

ازنامهای رجال واساس بنای آن کلمهٔ (اخ)است و آن حالت شخص یاحیوانی راتصویرمی کنند که بردوپاایستاده سروگردن برافراشته گوش به آوازو دیده نگران برای استعلام- پیش آمدی باشد باشد، بنابران معنی لغوی اسم چنین میشود .

اَخك ۰ گو ش به آواز، گوش به زنگ، دیده نگران چشم براه- مترقب، متر صد ۰



## ٦ـ اَ سو (ف، مع )

نام اشخاص ست واساس بنای آن ازریشهٔ (اس)ست که متضمن معنی رفعت وبلندی ونجابت ست چنانچه در(آس) بمعنی اسپ و(هسك) که اصل ویابدل (اسك)ست ومعنی آن بلند وعالی است مانند سماء درعربی، واسپ درحیوانات اهلیه به نجابت معروف وباهوش ترازهمه است . ونیزمی توان شد که اسواصل یابدل (اشو) باشد که دراوستا اشو و اشاواشم بمعنی راستی ودرستی است زیرا که تبادل میان (س) و(ش) بسیاراست . بالجمله معنی لغوی اسم چنین میشو د .

اسو · عالی، رفیع ـ نجیب، شریف ـ راست گفتار ، درست کار .



## ۷ ـ آمران (ف س ف س)

از اعلام رجال‌ست واساس‌بنای آن (امر) است که‌از ریشهٔ (ام) ساخته شده است واین ریشه متضمن معنی شمار وضبط‌است‌چنانچه در(امستل) بمعنی‌برشته در کشیدن ونظم‌نمودن و(امرل) بمعنی احصاءوضبط نمودن. بنابران معنی‌لغوی اسم‌چنین می‌شود امران · محصی، متصدی عمل‌احصائیه، رئیس‌دائرهٔ احصائیه

## ۸ ـ اورمړ (ض س س ز س )

نام‌اشخاص‌ست وبنای آن ازدوجز، (اور) و(مړ)ست. اوربمعنی آتش و مړ بمعنی مردمی‌باشد ومعنی‌مرکب مرد آتشکار است ومانند ومرادف فائیرمین ( Fireman ) در انگلیسی می‌باشد اینگونه‌ترکیب که ازانضمام‌یك کلمه باکلمهٔ مردحاصل میشوددرانگلیسی بسیارشائع است‌وچون که درپشتوهم نظیر آن موجوداست می‌بایددرساختن الفاظ‌جدید اینگونه ترکیب‌هم مدنظر گرفته‌شود بالجمله معنی لغوی اسم راچنین می کنیم

اورمړ · آتش خاموش کن ، عضوهیت اطفائیه ، سوخت انداز ،



## ۹ ـ اوریا (ض مج س ف س)

نام‌اشخاص‌ست ونیز لغتاً درپشتوی رائج بمعنی بارش‌ست وبه‌این معنی‌لهجهٔ ایست در (وریا) که‌اسم مصدراست از(وریدل) بمعنی‌باریدن · اسم‌اوریا لهجهٔ دراسم (آریا) هم شده می‌تواند، مگر ما اساس بنای آن را (اور) بمعنی آتش‌میگیریم‌ودرینصورت لفظ‌دلالت‌میکند‌برچیزیکه‌دارای آتش‌زیادباشدیابرمفهومیکه قریب‌مفهوم لفظ آتشبار باشد ونظربه‌آن معنی لغوی اسم‌چنین‌میشود:
اوریا، چیزهائیکه درجشنها وامثال‌آن آتش زنند، آتش‌بازی ـ آتش‌باری ، شخص‌عصبانی.

## ۱۰ ـ بادپښ (ف س س ز س)

اسم‌موضعی‌ست درآخر تنگاب‌وشروع علاقهٔ لغمان وبنای‌آن از دوجزء است یکی (باد) که معنی‌آن معروف‌است ودوم (پښ) که‌اسم صوت‌است وازوزش بادحکایه می کند ومجموعاً بمعنی بادخیز میشود بنابران معنی لغوی اسم چنین‌شد بادپښ · بادخیز ، باد خانه ، مهب‌الریاح



## ۱۱ ـ باندر (ف س س ف س)

اسم موضعی ست در علاقهٔ شنوار واساس بنای آن (باند)ست که صورت‌محدود (بند) ست

وآن بدل ومرادف (وند) است. بوند ( bannd ) در انگلیسی بمعنی محدود کردن وبوندد ی ( bovndry ) بمعنی سر حد و حدودست و با کلمهٔ باندر چندان تفاوتی ندارد ، بالجمله معنی لغوی اسم چنین می‌شود : باندر . سرحد ، حدوحدود ـ سرحد دار .



## ۱۲ ـ بدین (ف ک مع س)

نام اشخاص واساس بنای آن (بد) به فتح (ب) یا به ضم آن ست (بد) بدل (وده) وبمعنی نفع وفایده ست چنانچه گویند دبدشی ( چیز کار آمد وفایده مند ) نابدشی (چیز ناکاره) بدبصورت (بود) هم تلفظ می‌شود. (وده) که کلمهٔ پشتو است درفارسی (هده) شده که ضد آن بیهده یا بیهوده است بالجمله معنی لغوی اسم چنین میشود :

بدین . مفید ، نافع ، کار آمد ، باهده ، ضد بیهوده .



## ۱۳ ـ برزو (ف س ض مع )

ازاعلام رجال واساس بنای آن (برز) ست بمعنی عمل ، کار ، ورزش. این اسم از اسمای قدیمه ست وامروز مستعمل نیست .

بالجمله معنی لغوی اسم چنین میشود :

برزو ، وازشکار ، پهلوان .



## ۱٤ ـ برګوبت ( ف س س ک مج س )

نام رجال است وترکیب آن ازدو کلمهٔ ( برګ ) و ( وبت ) می‌باشد . برګ ازریشهٔ برکه متضمن معنی علوست ساخته شده وبمعنی بلند می‌باشد ، وبت اصل کلمهٔ بیت است ومعنی آن قاعده ، اصل ، ته ، پایه واساس می‌باشد ، وبدل ومرادف آن است کلمهٔ بیس ( bace ) در انگلیسی . بالجمله معنی لغوی اسم چنین میشود :

برګوبت . جداعلی ، شخص بسیار بزرګ .



## ۱۵ ـ برمی ( ف س ف س )

نام اشخاص است واشتقاق آن از ( برم ) بمعنی قوت ، توان وزوراست ، بنابران معنی اسم چنین میشود ،

برمی . پرقوت : زورمند ـ غاصب ، زورگیر .

نودجنازی تر رار سید لو وړاندی دمشرقی ټول علماء او سادات ،مشائخ اوسپین ږیری
اعزه او معاریف اونور خلك او د معارف شاگردان پهباغ شاهی کښې دسیددجنازی داستقبال
دپارهدسرك دواړوغاړوته پهډېراحترام سرهولاړوو، پهدغهوخت کښېوالاحضرت اشرف صدراعظم
هم تشریف راوړاوپهډېر شفقت سرهئې دحاضرینوسره پوښتنهوکړه ، اوبیاحاضرینو تهئې د علومـو
او اخلاقو اودنیوی اواخروی ټولو کامیابیو دګټلو اوحاصلولو دپارهیو جامع وصایا ایراد
کړل چهحاضرین ئې پهاورېدلو ډېرزیات محظوظ شو.

همدغهشان دحضرت سید دجنازی درارسیدلو پوری، دې حالت دوام درلود اودوالاحضرت اشرف
دغهشفقت اومهربانی په خلکو کښې ډېراثر وکړ.

دحضرت سید تابوت شپهپهباغ شاهی کښېو، اود جدی په (۹) تاریخ سهار کابل خواته په
حرکت شو، اوخرنګهچهمقرره شوی وه، دماپښین پهدوو بجو غازی والاحضرت دحربوزیراووالاحضرت
دمعارف وزیر اودصدارت عظمی معاون او والاحضرت دمرکزی قواؤ قوماندان اود اسلامی
خارجی مملکتونو سفیران اوداخلی وزیران اونوروعالی رتبه لښکری او کشوری مامورین پهبګرامیو
کښې یوځای شوی او دحضرت سید دتابوت پهانتظار کښېو، دسیدتابوت پهدوونیمو بجو بګرامیو
تهورسید ،اولمړی ی دتشریفاتی عسکری قطعی له خوا رسم تعظیم اواحترام وشو ،اوبیاوروسته ټولو
مستقبلینو پهډېر احترام دتعظیم رسم پرځای کړه، وروسته تردې دجنازې موټر دکابل خواته حرکت
وکړ ، او ترشائې دمستقبلینو موټرونه په یو مخصوص ترتیب روان شوه ، په لیار و کښې داهالیو
له خوا چه دبګرامی پیاتر سیاه سنګه پوری د سرك پردواړو غاړو ولاړوه ، اودسید دتابوت
پهانتظار کښېو ، پهډېر خوشحالی اوجوش وخروش ئې پذیرائی وکړه اود«روح دې ښادوه سیده»
پهږغ ئې ښه راغلې ورته کړله .

دسید تابوت چهدحقوقو فاکولتې تهورسیده لمړی دپولیسو دتشریفاتی قطعی لهخوا دتعظیم
رسم اجراشو ، او وروسته دفاکولتې شاگردانو دسید تابوت دجنازې دموټرڅخه پهډېر احترام
چهپه ملی بیرغ ښایسته شوی و کښته کړه، اودفاکولتې صالون تهئې ویووړ پریوه لوړ تختئې
کښېښود. دقرآن کریم دځو آیتوتراوستلو وروسته والاحضرت دمعارف وزیر اودصدارت عظمی
معاون یوه مختصره اوجامعه خطابه دسید دجنازی په نسبت اودده پهاهمیت کښې ایراد کړه.
دوالاحضرت د وینانه وروسته ښاغلی پژواك دنشریاتو عمومی مدیردداسی لوړو اونابغه اشخاصو
دبرجسته مقام اووجود اوپهملتو کښې ددوی دتاثیرپهشاوخوا کښې خصوصاً دپښتون سید دشخصیت
پهاطرافو کښې یوه مفصله اولوړه بیانیه ایراد کړه ، ترده وروسته ښاغلی بېنوا دپښتو ټولنی معاون
یوهپښتو منظومه چهپښتنی احساسات پکښې نغښتی وه، واوروله، پهپای کښې ښاغلی عبدالرحمن خان
چه دعلامه پښتون سید لهتابوته سره راغلی و ، دسید دتابوت دراوړلو اوپه هرځای کښې دهغه
دلوړې شانداری پذیرائی لنډراپورت ووایه، دده تر وینا وروسته بیا حاضرینو لاس پورته کړه

اودپښتون سید اوږ روح ته ئې دعا وکړه ، او حاضرین رخصت شول د پښتون سید تابوت هغه شپه په فاکولته کښې پروت و .



دجدی په لسمه ورځ ترغرمې دمخه پرلس بجې والاحضرت وزیر دربار، والاحضرت دمرکزی قوا قوماندان اووالا حضرت دمعارف وزیر اودصدارت عظمی معاون اونور وزیران او رئیسان اوعالی رتبه ملکی مامورین دمدیر تردرجې اوعسکر لوړ منصبداران دغنډ مشر تردرجې اود فاکولتو اوعالی مکتبو اودحربې فنونو دمکتبو شاګردان دحقوقو اوسیاسی علومو دفاکولتې په غولی کښې راغونډ شوې وه ، دمرحوم سید تابوت دفاکولتې دمعلمینو او دمطبوعاتو دریاست داعضاؤ پراوږو دفاکولتې لهصالون څخه په ډېر احترام را کوزشو اوټولو حاضرینو رسم تعظیم اجرا کړ - بیانو دټاکلی شوی پرو ګرام سره سم د ښخېدو دځای خوا ته تګ شروع شو ، ترجنازې دمخه یوه قطعه سپاره پولیس وه ترهغه وروسته دپولیسو دوپیاده قطعو حرکت کاوه اوبیا دحربی‌مکتبو زده کونکی اوترهغو وروسته‌دوزارت خانواونورو مملکتی دوائرو اومؤسساتو نماینده ګـان چه د ګلو لاډو نه ورڅخه وه تلل ، لههغه پس د جنازې موټرو ، چه دمعارفو منتخب طـلاب ورسره تلـه ، وروسته رسمی اوملی دوائرو د مامورینو موټران په ترتیب سره رهی وه ، دسړك پرغاړو دمکتبو شـاګردان مامورین اوډېر زیات اهالی ولاړ وه دجنازې‌موټر وورورو دمدفن خوا ته روان‌وځو په ډېر عزت اوا حترام اوتجلیل دپښتون نابغه تابوت دخپل وطن خاورته وسپارل‌شو په‌دې‌وخت‌دقران کریم‌څو آیتوترقرائت‌وروسته‌ټولو حاضرینو دعاو کړه او بیاد کـابل دمرافعې‌قاضی‌دپښتون‌سید دخدمتو اوروحانی مقام په‌شاوخوا کښې وینااو کړه‌په‌پای کښې ښاغلی «توروایانا» دحقو قواوسیاسی دعلومو دفاکولتی‌معلم دمرحوم سیدلوړشخصیت اودده‌مقام او دافکارو تاثیرپه‌شرق‌اوغرب کښې اودده لوړی اوعالی آرزو ګانی د ټولوملتو خصوص مسلمانانو دپاره خوراخوږواوجذابو کلماتوبیان کړل‌ترهغه‌وروسته‌ښاغلی ګویاد مطبوعاتو دریاست‌مشاور دښاغلی خلیل‌الله‌خان« خلیلی » منظومه‌چه‌ددې ورځی‌په‌مناسبت‌ئې جوړه کړی‌وه‌ولوستله‌په‌پای کښې د ګلو ایښوولومراسم‌شروع‌شوه وزیرانو اوکور دیپلوماتیک اودمملکتی اوملی دوایرواوموسساتو رئیسانو په‌ترتیب دپښتون‌سیدمزارپه ګلوپټ کړاودښخیدومراسم تردعاوروسته‌تمام‌شوه .



دجدی په یوولسم‌تاریخ‌ترماز پښین وروسته پردووبجوزمونږ علم پالو نکی اعلیحضرت او زلمی ټولواك دپښتون سیدمزار ته په‌داسی‌حال کښې چه‌دمطبوعاتو مستقل‌رئیس‌هم‌ورسره وتشریف یووړلمړی دجناب‌قاری محمدعمرخان لهخوادقران کریم‌څو آیته‌ولوستل‌شول‌اوهمایونی‌اعلیحصرت‌و مغفور سیدروح ته‌په‌ډېر اخلاص‌دلوی‌خدای‌دربارته دعاو کړه‌اود ګسلولاډ ئې‌دسید پرمزار کښېښودوروسته دمطبوعاتو مستقل رئیس‌دملو کانه‌ذات ددې‌قدرشناسی په‌نسبت چه په‌حقیقت کښې دعـلم‌اوعرفان احترام دی دهمایونی‌حضورته د شکران عرض و کړاودسید جمال‌الدین دهوړاوډل ئې خپل‌وطن ته دمملکت

دافغانی مطبوعاتی هیئت پلیرانی په یولی کښی، (هغه وخت چه د هند د مطبوعاتو دوزیر له خوا بلل شوی ؤ)



ناست خلق له ښی خوا : آقای کرنیل ویر د هند د نشریاتو د اداري رئیس، ښاغلی عبدالرحمن پژواک د افغانستان د نشریاتو عمومی مدیر، د هند د جنوبی وزیر، جناب سر سید احمد د هند د مطبوعاتو وزیر، ښاغلی سید قاسم رښتیا د افغانستان د مطبوعاتو د مستقل ریاست معاون، ښاغلی عبدالحی حبیبی د افغانستان د ادبی فاکولتی رئیس او د پښتو ټولنی کفیل، آقای بازمن د هند د مطبوعاتو د وزارت معاون.

ولاړ خلق له ښی خوا : آقای شرما دافغانی هیئت مهماندار، آقای کپتان هوس د هند د مطبوعاتو د وزارت د معاون نایب، جناب سر اولاف کیرو د هند د خارجه وزارت کفیل، آقای تاپه د هند د مطبوعاتو د اداري د معاون نایب، آقای حمید د هند د رادیو د عمومی مدیر کفیل.



دطبي فاکولتې دمتعلمینو یوه ټولګۍ چه دتشریح دتطبیقاتو دپاره هند ته لیږل شوی وه او دبمبئی
په (جی جی هسپتال) کښې دهغې مؤسسې د پروفیسرانو سره.

دراتلونکو ترقیاتو د ډیر والی د پاره نیک فال وشمېره همایونی اعلیحضرت هم مرحمت آمیزه اظهارات وفرمایل او ضمناً ئې له دې څخه چه ددې د پاچهی په وخت کښې دافغانستان دداسی نوموړی اونامتو زوی هډوکي خپل وطن ته راوړه شوه دزړه خوشی څرگنده کړه او دافغانستان حقیقی اوړ والی او ترقی ته ئې خپل امیندونه نوی کړه بیائې وبله پلا دعاو کړه او مراجعت ئې وفرمایه دهمایونی اعلیحضرت د گلودلاړ په منځ کښې داجمله لیکلی شوې وه :

« د گلو دا گیډۍ چه زمونږ دزړه دعواطفو نمایندهده دپښتون سید جمال الدین پرپاك مدفن دده دافکا رو عظمت جلالت اوقدر په اسلامی نړۍ کښې څرگنداوښکاره دی زدم او مبارك روح ئې دوطن په غېږ کښې آرام او خوبښ غواړم. »

۞ ۞ ۞

## دمطبوعاتی هیئت تګ هند ته

دحوت دمیاشتی په اواسطو کښې یو مطبوعاتی هیئت دهند دحکومت له خوادعرفانی اومطبوعاتی مؤسسو دپیشر فتونود کتنی د پاره په دوستانه ډول دعوت شوی و ، اودخپل اقامت په موده کښې دهند دحکومت میلمه و ، دې هیئت دخپل اقامت په ورځو کښې دډیلی داویو خلکو اود مطبوعاتو اوجرائدو خاوندانو سره ملاقاتونه وکړل اودغه ځای عرفانی اوتاریخی آثار ، عالی ښوونځی او دډیلی د راډیو مرکزاو کتابخانی اونور ځایونه ئې ولیدل ، دحمل په څلورم تاریخ دډیلی څخه د لاهور په لوررا روان شو ، په لاهور کښې هم دپنجاب صدراعظم دوی ته دعوت ورکړ او په دغه ځای کښې هم دجرائدو خاوندانو د دوی ملاقات ته ځانونه ورسول ، افغانی مطبوعاتی هیئت په لاهور کښې دخپل اقامت پموده کښې ددغه ځای دارالفنون اوعالی مکاتب اوتاریخی آثار هم وکتل اووروسته ئې دپېښور خواته حرکت وکړ ، په پېښور کښې دیوی ورځی اقامت نه وروسته دجلال آباد په لورد کابل خواته روان شو ، اوپه یوه بجه کابل ته ورسید .

دې هیئت دتشکر تلگرام دهند د حکومت اودهغوی دمطبوعاتی اوعرفانی موسسو دمهمانوازۍ اومساعدت په نسبت چه ددوی دسفر په وخت کښې عملی شوی ودجناب سرسید سلطان احمد دهندوستان داطلاعاتو اونشریاتو دوزیر په نامه مخابره کړی او ضمناً ئې ددواړو مملکتو په منځ کښې دډیرو روزافزونو مطبوعاتی او عرفانی علائقو دتقویه کولو په نسبت د امیدواری اظهار کړی .

ددغه تلگرام ځواب دجناب وزیر مطبوعات له خوا هم په دې لاندنیو الفاظو راغی « ستاسی دمرحمت کارانه تلگرام نه ډیر ممنون شوم او پوره اعتماد لرم چه زما دملاقات خاطری به تاسی ته هماغومره شوی لکه چه ماته دی ، زه به همیشه پخپلی ټولی توانائی آماده اوسم چه د دواړو مملکتو دمؤسسو په منځ کښې دتهذیبی روابطو او صمیمانه علائقو په تاسیس اوتشیداووړاندی تللو کښې کوښښ وکړم »

۞ ۞ ۞

دادعوت زمونږ د گران هواد په معارف اومطبوعاتی محافلو کښې د قدرشناسی په نظر تلقی شوی دی اویقین لرو چه دافغانی مطبوعاتی هیئت سفر به هند ته ددې علائقو اوروابطو دتشیدباعث اوددې رازمو جباتو په اثر به ددوو ملتونو ترڅې والی او ښه مفاهمه به له پخوانه ډیر زیات حاصل شی ·

## د نړۍ پېښې

### په ۱۳۲۳ کښې

لیکونکی ښاغلی «رښتیا»

دا کال د جګړې د ټولو کلونو نه زیات اهمیت لري ځکه چه په دې کال کښې د جګړې اوله برخه خپل پای ته نژدې شوه او دا ښکاره شوه چه المان مات شو او د ۱۳۲۴ په دوهمه میاشت کښې دې مسئلې حقیقت وموندو او المان بې له شرطه تسلیم شو اوس جګړه یوازې په شرق اقصی کښې جاري ده او هیله کیږي چه د ۱۳۲٤ کال د تمامید و نه پخوا په دغه منطقه کښې هم محاربه پای ته ورسیږي .



ښاغلی سید قاسم خان «رشتیا»

نو په دې لحاظ داو یلای شو هر کله چه نړۍ په دې پنځو تېرو کلو کښې د ډېر سخت مصیبتو نه لیدلی وروسته تر دې چه د بنی آدم د بدبختی دوره تېره شوې وي او یوه داسې نوې دوره به مېنځ ته راشي چه ټول ملتونه به په امنیت ، اتحاد ، ورور ګلوي ، مساوات او رفاهیت ژوند وکړي د دنیا ټول منابع او ګرد قوا به د انسانانو د پرمخ تګ په لاره کښې صرف شي او په د دغه شان به یوه نوې او ښایسته دنیا جوړه شي .

هر کله چه د اروپا د جګړې ختمید ه یوه فیصله کوونکې واقعه بلل کیږي نو مونږ مجبور یو چه خپل اجمال تر هغه وخته پورې چه المان رسماً او کاملاً تسلیم شو ، پسې اوږد کړو او د امقصد مونږ مجبوروي چه د ۱۳۲٤ د یوې نیمې میاشتې واقعات هم په خپله مقاله کښې داخل کړو ځکه بې له دې زمونږ خبرې ناقصې او ناتمامه پاتېږي . امید کوو چه ګران ویونکی له دغه تصرف څخه خوا بدی نشي .

اګر که هغه وخت چه یوه واقعه خپل پای ته رسیږي د هغې واقعې د مختلفو مراتبو او مدارجو بیانول د خینو خلکو په نظر تحصیل حاصل معلومیږي مګر بیا هم د تاریخ په لحاظ او ددې دپاره چه سړی یوه حقیقي نظریه د هغې واقعې په شا و خوا کښې حاصله کړي لازمه ده چه هغه مراتب او مدارج چه دې واقعې ته منجر شوي دي ، ښه مطالعه کړي . نو له دې جهته مونږ مجبور یو چه هغه تېر واقعات چه د المان د ماتې او د اروپا د جګړې د ختمید و مقدمات بلل کیږي په لنډه دول بیان کړو .

## داروپا جنګ :

شرقي محاذ : ددې کال (۱۳۲۳) په سر کښې دروسانو حملو(چه دستالینګراد د بېرته نیولو (یعني د ۱۳۲۱ دژمی) وروسته په قطعي طورسره متوقفې شوې نه وې) دوام وکړ اوسر ولښکرو الماني‌انو دخپلې خاورې څخه وایستل اوددوی په متصرفه علاقه کښې لکه پولینډ ، رومانیه ، اود بالتیک په جمهوریتو کښې داخل شول دبلې خوا فنلینډ اورومانیې ددوی سره صلحه وکړه اوبلغاریې هم ومنله چه روسي قوا ددوی دبندر و اوهوائي میدانو څخه کار واخلي دی وضعیت دروسانو دپرمخ تګ په لاره کښې خورا ډېره اساني پیدا کړه اوددوی په فصل کښې روسانو تولو رومانیه اودپولینډ اودبالتیک دریاستو ډېره برخه ونیوله اوپه یوګوسلاویا کښې هم داخل اودمارشال تیتو دیوګوسلاویا دملي مشر دقوا ؤسره یوځای شول اودالمان خاورته ئې ځان نژدې ورساوه .

په منځ کښې د سرولښکرو قوا ؤ دشمالي پولینډ اوجنوبي لیتوانیا په لاره کښې خپل قوا دشرقي پروشیا په خاوره کښې داخل کړل اودالمان لمړنۍ جګړه شروع شوه . دبلې خوا په همدغه وخت کښې دیوګوسلاویا اودسلوا کیا په لاره په هنګرۍ (مجارستان) ننوتل اګر که د مجارستان نائب السلطنه دروسانو څخه مصالحه وغوښته مګرجرمنیانو پرې نښود او نوی حکومت ئې جوړ کړ اودمدافعې ترتیبات ئې ونیول مګربیاهم روسانو دهغه مملکت په خاوره کښې خپل موفقانه پرمخ تګ ته دوام ور کړ اوپه متصرفه علاقه کښې ئې نوی حکومت جوړ او دهغه سره ئې مصالحه وکړه دبوداپست جنګ دوه نیمې میاشتې اوږد شو ـ اودژمی په سر کښې دغه پایتخت هم سقوط وکړ اود استریا په طرف دروسانو لار خلاصه شوه .

په پولینډ کښې روسان اګر که په دوبې کښې وارساته رسیدلی و ـ بیاهم دوارسا جګړه دژمی په سر کښې شروع شوه اوهغه ملي پولینډیان چه دروسانو دنژدې کېدو په وخت کښې ئې په وارسا کښې دالمانیانو په مقابل کښې قیام وکړ ، دروسانو دتوقف په اثر مجبور شول چه پس دډېرو تلفاتو دتحمل څخه ځانونه و المانیانوته وسپاري .

دژمی په سر کښې دروسانو آخرنۍ حمله شروع شوه اودوی لمړی دمرکزی پولینډ په استقامت دالمان داصلي خاورې په طرف خپل فشار زیات کړ اوژر ئې ځانونه د (اودر) سیندته ورسول چه برلین ته نږدې بهیږي په دغه صورت دالمان په خاوره کښې دسلیشیا په علاقه کښې جګړه شروع شوه ـ اګر که المانیانو ډېر کوښښ وکړ چه له خپلې اصلي خاورې څخه مدافعه وکړي لیکن ممکنه نشوه اوشوروی قواژر د(اودر) دسیند څخه هم د (فرانکفورت) اود (کوسترین) په مینځ کښې دالمان په مقابل کښې ور سیدل .

دبلې خوا روسي قوځونو ټول بالتیک اوشرقي پروشیا د(دانزیګ) اود (کونیګسبرګ) دبندرو

سره د بالتیك په غاړه کښې ونیول او د شمالی پولیند دالمان په ساحلی علاقو کښې ننو تل . په جنوب کښې دوی دهنګری اشغال تکمیل او د استریا پایتخت (وین) ئې ونیو .

دژمی په پای کښې روسی قواؤ دځینو اخری ترتیباتو نه وروسته دالمان پر پایتخت باندی په حمله پیل وکړ او د (۱۳۲٤) دحمل په میاشت کښې دهری خوا برلین محاصره شو او دثور په لمړیو ورځو کښې ئې پر هغه ښار باندی پرغل وکړ د ثور په (۱۱) هغه ښار ټول ونیول شو او په عین زمان کښې دبرلین دجنوب خخه تېر او دغربی متحدینو سره یو ځای شول . همدا رنګه په شمال کښې دالمان مختلفو ښارو او بندروته ننوتل او په جنوب کښې د پراګې دچکو سلواکی دپایتخت خواو شاته ورسیدل . په دغه وخت کښې المان بلاشرطه تسلیم ومانه او جګړه د ثور په (۱۸) کښې پای ته ورسیده . چه تفصیل ئې په خپل ځای کښې راځی .

## جنوبی محاذ :

داروپا جنوبی محاذ دوی برخی اری . لمړی دیو ګوسلاویا او یونان محاذ او دوهم دایطالیا محاذ - دیو ګوسلاویا په محاذ کښې چه دتیر کال راهیسی دمارشال تیتو قواؤ دالمانیانو پر ضد جګړه شروع کړی وه په دی کال کښې په دې محاذ کښې ډیر تغیرات پیښ شوه او روسیانو او انګریزانو اوامر یکائیانو دتیتو سره کمکونه وکړه او په منی کښې روسی قوځونه هم دیو ګوسلاویا په خاوره کښې داخل شوه او همدا رنګه دانګریزی لښکری په البانیا کښې ننوته شوی یو ګوسلاوی عساکرو په ژمی کښې ډیری ځمکې دالمانیانو څخه خلاصی کړی او د ۱۳۲٤ په سر کښې دایطالیا سرحدته ورسیدل د بلی خوا انګریزی عسکر دمنی په موسم کښې په یونان کښې پلی شوه او په لنډه موده کښې ئې دیونانی ملیونو په مرسته ټول یونان ونیوا او المانی قوا ئې د (کریت) او (دودیکانیز) له جزیرو او ه قولې جنوبی اروپا څخه عقب نشینی وکړه .

دایطالیا په محاذ کښې چه دغه محاذ هم په ۱۳۲۲ کښې پرانیتلی شوی و او تر اوسه پوری ئې دوام کړی و په دې کال پکښې سخته جګړه موجوده وه لیکن کمه قطعی نتیجه لاس ته نه وه راغلی - ځکه چه المانیانو او فاشیستی ایطالویانو دایطالیا په شمال کښې د(اپناین) په غره کښې ډیره کلکه جګړه کوله او دژمی په موسم کښې دهوا دخرابوالی په مناسبت محاربه معطل کیدله . بیا هم د متحدینو پنځم او اتم لمبراردو دایطالیا د تنګی په امتداد کښې کوښښ کاوه چه مخ ولاندې ولاړ شی .

فقط دژمی په پای او د (۱۳۲٤) د پسرلی په شروع کښې د متحدینو قواؤ په فیصله کوونکی حمله پیل وکړ او دالمان استحکامات مات شوه د متحدینو قواد (پو) په دره کښې داخل شوه او په دغه صورت دایطالیا په شمال کښې چه صنعتی منطقه ده ، یو عامه پریشانی پیدا شوه چه ژر عمومی شورش ته منجر شوه او دهغه په اثر دموسو لینی فاشیست حکومت ختم او هغه پخپله هم له خیلو ملګرو سره ووژل شو او د المانی قواؤ په مقابل کښې هم قیام محسوس شو چه دهغه په اثر دالمانی قواؤ ته ماندان خیل یو ملیون المانی او ایطالوی عسکر متحدینو ته بلاشرطه تسلیم کړ او دخوورځو په ضمن کښې تو له ایطالیا او د آستریا یوه برخه متحدینو ته تسلیم شوه او دایطالیا اردو دمحاذ غرب دقواؤ سره د (برینر) په دره کښې سره یو ځای شول .

## غربی محاذ :

په دې محاذ کښې چه د جوزا ( جون ) د میاشتې پوری بی له هوائی جگړې په وچه کمه محاربه موجوده نه وه لکه چه انتظار کیده د جون د میاشتې په (٦) د متحدینو پرقوا د نورماندی (فرانسی) په ساحل کښې کښته شول - المانیانو خورا ډېر کوښښ و کړ چه د دوی مخه بنده کړی لیکن موفق نه شوه او د یوی میاشتې د جگړی نه وروسته د متحدینو قواؤ د المانیانو غربی دیوال مات کړاو په فرانسه کښې داخل شوه او پاریس ئې و نیوله هرې خوا د المان و خوا ته روان شول یوه برخه ئې د شمال د لاری بلژیك او گز امبورگ ته داخل شوه او یوه بله قوه د فرانسې په جنوب کښې پلی شوه او د سویس سر حد ته یې ځان ورسما وه په دې صورت کښې په دوو میاشتو کښې د ننه تقریباً ټوله فرانسه او د لوگزا مبورگ او د بلژیك یوه مهمه برخه متحدینو اشغال کړه او د دوی قوا د المان سر حد ته ور سیدل ۰ دلته یاد دوی په مقابل کښې د ( زیگفرید ) خط او د ( راین ) دریاب و ، چه المانیانو پکښې خورا ښه استحکامات جوړ کړی و - دلته ډېر سخت جنگونه وشوه چه کله متحدینو او کله المانیانو په حمله او متقابله حمله پیل کاوه لکه چه المانی قوماندان ( روشتد ) د دسمبر د میاشتې متقابله حمله د ( آردن ) په جبهه کښې خورا مهمه وه او د بلژیك مهمه برخه ئې هم مسترد کړی وه منگر متحدینو د غومره و کولای شوه چه په کراری سره د راین په غربی غاړه کښې ننوزی او هلته خپلې پښې ټینگې کړی د پلی خواهغه کوښښ چه انگریزانو و کړچه د هالیند د شمال څخه د پاراشوتی قواؤ په ذریعه په المان کښې داخل شی هم د المانیانو د سخت مقاومت په نسبت نا کام شوه پیاهم د کال په پای کښې د متحدینو اخری حمله د المانیانو د راین پر استحکاماتو باندی شروع شوه او د کال په آخرو ورځو کښې دوی و کولای شوه چه د راین څخه تېر شی او د جرمنی په صنعتی منطقو کښې نفوذ و کړی . که څه هم المانیانو - کوښښ و کړچه د (الپ) د سیند په غاړه کښې پیاټینگار و کړی لیکن کامیاب نه شوه او د حمل په میاشت په (۱۳۲٤) کښې د متحدینو قوا د الپ د سینده څخه هم تېر شول ، حالانکه د فرانسې د جنوب څخه امریکائی او فرانسوی قوا د سویس د سرحد په اوږدوالی کښې آستریا ته ننوتل - او همدارنگه په شمال کښې انگریزی قواؤ د هالیند د جنوب څخه د بالتیك د غاړی په امتداد د جرمنیانو پر بنا درو په حمله پیل و کړ ۰

په دغه صورت المان مجبور شو چه بلاشرطه تسلیم شی- منگر لمړی دوی د متحدینو په برخه کښې په تسلیمیدو پیل و کړ او د ثور په ۱۳- د شمالی مناطقو عسا کر چه شمېر ئې دیو ملیون کسو څخه زیاتؤ مارشال مونت گومری ته تسلیم شو او د ثور په ۱٦ د جنوب غربی قوا چه (٤۰۰) زره تنو ته رسیده ځانونه ئې امریکا ئیانو ته وسپارل په پای کښې د ثور په ۱۷ د المان د ټولو قواؤ د بلا شر طه تسلیم قرار داد ټولو متحدینو ته (چه په هغه کښې روسیه او فرانسه هم شامل دی) په فرانسه کښې امضاء شوا و د ثور په ۱۸ د المان ټولو قواؤ په المان ، دنمارك، ناروی ، د مانش په بندرو او د مد یترانی

په‌بندرو کښې‌خپلې وسلې کښېښودی بیاهم صرف دچکوسلواکیا اوآستریاپه‌برخه کښې جگړی ښوورلی نورهم دهغو محاذاتو دقوماندانو دعدم تسلیم په‌لحاظ و ځنې‌ډی داروپا جگړه دپنځو کلو اواوو میاشتونه وروسته پای ته ورسیده ۰

## دشرق اقصی محاذونه :

په‌دې کال کښې په‌دې محاذو کښې هم‌خورامهمې پېښې‌واقع شوې‌اود متحدینو قواؤ خپل ځانونه جاپان ته‌هم نږدی کړی‌دی ۰

اوس که‌وغواړو چه‌ددې منطقی محاذونه په‌څو مشخصو محاذو تقسیم کړو باید ووایو چه په شرق اقصی کښې اوس دالاندینی محاذونه موجود دی :

دبرما محاذ ـ د چین محاذ ـ دشرق الهند اودنیو گینی محاذونه اودفلپائن اوبحر الکاهل نور محاذو نه .

لیکن دلنډوالی دپاره بهتره ده چه‌دااټول محاذونه په‌دوه برخو وویشو لمړی دوچې محاذو نه اودوهم دبحرالکاهل دجزیرو محاذونه ۰

## دوچې محاذونه :ـ

دبرمامحاذ:ـ په‌دی محاذ کښې‌په‌دې کال‌خورامهمې کامیابی دمتحدینو په‌لاس‌ورغلی.دمتحدینو قواؤچه د کال په‌سر کښې‌ئې دجاپانیانو دمتقابلې حملې‌مخه بنده کړه پخپله‌ئې‌هم په‌یرغل پیل‌وکړ اودې یرغل ډېره کامیابانه نتیجه ورکړه چه‌په شپږو میاشتو کښې ئې دبرما نیمائی د جاپانیانو دلاسه وئیست اود کال‌په پای کښې‌دبرماجنوبی بندر (اکیاب) اودتوی کال په‌سر کښې د برما مرکز ( رنگون ) هم د متحدینو په لا س کښې شو ۰ په عین زمان کښې دبرما معروفه جاده‌هم‌دسره(لاشیو)بیاتر ټایپه (رنگون) پوری آزاده شوه ، دا کامیابی چه‌په هغه کښې‌انگریزی امریکائی‌او‌چینی‌عسکرټول‌برخه‌لری،دیوی‌مشترکی‌نقشې‌په‌اساس‌اودمتحدوعملیاتو‌په‌اثرلاس ته‌راغلی‌ده۰

اوس‌متحدین کولای‌شی چه‌پرملایااو سیام اوفرانسوی هندچینی کښې (چه‌دا آخری مملکت په دې آخری ورځو کښې دجاپانیانودخوا پوره‌اشغال‌شوی‌دی) خپله‌حمله شروع کړی۰

## دچین محاذ :

دبرما عملیاتو دچین‌پرمحاذباندی ډېرمثبت‌تاثیراچولی دی ځکه‌چه‌جاپانیانو ترتیبات‌نیولی‌و،چه‌د خزان‌په‌موسم کښې‌دچونگ کنگ په‌خوا کښې حمله‌وکړی اودچین‌مرکز‌ته سقوط‌ورکړی ځکه چه‌خپل‌ځان ئې‌دچونگ کنگ ۲۵۰ میلی ته‌رسولی ؤ‌مګر د برماموفقانه عملیاتو جاپانیان‌مجبور کړه‌چه‌ددې نقشې‌څخه صرف‌نظروکړی اوخپلې‌قوی‌دبرماشمال‌ته ولیږی،اودبلې‌خوا دبرما‌دلاری په‌خلاصیدو چین‌ته‌ډېر کمکونه ورسیده‌اودجاپان ډېر مخ‌تګ لاره بنده‌شوه ۰ اوس‌جاپانیان په

جنوبي چين کښې تدافعي ترتيبات نيسي ځکه چه هر دورخ انتظار کېږي چه دمتحدينو قوا به دچين په جنوبي ساحل کښته شي اود چينيانو دوچي دقواؤ سره به ارتباط قائم کړي.

## دبحرالکاهل دجزيرو محاذونه:

که مونږ دنيو گيني اودبوگسان ويل دجزيرو دجګړي څخه چه ددوتېرو کالو راهيسي جاري ده صرف نظر وکړو اوهمدارنګه د«مارشال» او«کارولين» دجزائرو دجنګو څخه چه اوس ئې خاتمه موندلې ده، ستر ګی پټی کړونو بايد ووايو چه په دې کال کښې تر ګردو مهمه واقعه په دې منطقه کښې دامريکائيانو اوآستريليائيانو کښته کېده وپه ماريانا اوفلپائن کښې د دوی عمليات په دوبی کښې شروع شوه اوجاپانيانو ونشو کولای چه جلو ګيري ئې وکړي ـ بلکه په بحري اوهوائي جګړو کښې ئې هم لکه دوچي په جنګو کښې ماتي وخوړه اوترشا کيدو ته مجبور شول . بياهم دفلپائن اود ماريانا اود (ايوجيما) جنګونه اوداو (ريوکيو) اوسني جګړه چه دغه آخري جزيره دجاپان څخه صرف ۳۵۰ ميله فاصله لري اود کال په آخر کښې امريکائيان پکښې کښته شوي دي خورا سختې جګړي بللې کېږي اوس دفلپائن د(۷۰۰۰) جزيرو اکثره برخه اود ماريانا او ايوجيما ټول جزائر د دمتحدينو په لاس کښې دي اودوی ددې مهمو مرکزو څخه دخپلي بری بحري اوهوائي قواؤ دعملياتو دپاره کار اخلي ـ دماريانا مرکزي جزيره ـ(سائيپان) چه دجاپان څخه (۱۲۰۰) ميله لري ده لوی هوائي ميدان و، چه د امريکائيانو لويو طيارو له دغه ځايه پرجاپان په بمباری پيل وکړ او بيا جاپان ته نژدې په ۷۵۰ ميلي کښې دايوجيما په جزيرو باندې يرغل ته دوام ورکړه شواو اوس د او کيناوا په جزيرو کښې چه دريو کيو دجزيرو په ګروپ کښې ده دجاپانيانو سره جګړه کوي . دلته هم جاپانيانو ډېر کوښښ وکړ چه دمتحدينو مخه بنده شي منګر کامياب نه شوه په شرق الهند کښې هم امريکائيان د بور نيو په جزيره کښې په دې او اخرو کښې کښته شوي دي اوس جګړه جاپان ته روغ په ورځ دهري خوا نژدې کېږي بياهم دجاپانيانو په ټينګار کښې تغير نه ليدل کېږي اودبصيرو خلقو دپيشګوئی سره سم ويلای شو چه دشرق اقصی جګړه به داروپا دمحاربې دختميدو په اثر خورا لنډه شي او د کال تر ختميدو دمخه به په هر صورت چه وي سره فيصله شي.



اوس چه دحربي واقعاتو دبيانه څخه فارغ شوو نو لازمه ده چه سياسي جبهې ته هم يو نظر واچوو اووئې ګورو چه دغه حربي نتيجې د کمې سياسي پېښې په اثر مينځ ته راغلي دي . په دې کال کښې هم دمتحدينو دخوا اودمحور دخوا څو مهم کنفرانسونه جوړ شوي وو چه په اکثرو مهمو مسائلو پکښې بحث وشو نو لمړی به ددغو کنفرانسو په باره کښې لنډه وينا وکو .

### دمتحدينو له خوا:

په دې کال کښې دمتحدينو له خوا څلور مهم کنفرانسونه جوړ شوي دي چه دوه ئې سياسي او نظامي و ، دوه نور يې اجتماعي او اقتصادي وو .

**دماسکو کنفرانس**: دکال په اواسطو کښې یعنې ددوبي په فصل ددروغتو مملکتو خارجه وزیرانو په مسکو کښې سره یوځای شول اودلته په هغو مسائلو باندې مذاکره وشوه چه دطهران له کنفرانس نه وروسته په سیاسي او نظامي جبهاتو کښې مینځ ته راغلي و ، په دې کنفرانس کښې داروپا پرمسائلو هم مفصل بحث و شو او په ضمن کښې دیوگو سلاویا په باره کښې فیصله منځ ته راغله چه ددغه مملکت پاچا باید دخپل ځان دخوا نائب السلطنه مقرر کړي او دلندن حکومت او دتیتو حکومت سره یو ځای شي او نوی مختلط حکومت جوړ کړي . دیونان په باره کښې هم متحدین فیصلې ته ورسیدل منگر داجرا کولو ټول صلاحیت انگریزانو ته پریښودل شو . دپولیند په نسبت پرېرې خبرې وشوې اوپه داسې حال کښې چه دپولیند دحکومت صدراعظم هم حاضرو دکرزن دخط په اساس دپولیند او روس نوی سرحد وټاکل شو ( لیکن هر کله چه دا فیصله دپولیند دحکومت دنورو اعضاؤ دخوا ونه منل شو دپولیند مسئله هغسې پاته شوه) .

دغه کنفرانس فیصله وکړه چه ژر ترژره دروزولت، چرچل اوستالین په مینځ کښې یو نوی کنفرانس جوړ شي اوپه عمومي مسائلو باندې غورو کړي ضمناً دا کنفرانس فیصله وکړه چه فرانسه یاباید دغتو دولتو په قطار کښې خپله کرسي اشغال کړي. دآستریا د استقلال په باره کښې هم اساسي فیصله وشوه .

**دیالتا کنفرانس**:- دمنۍ په پای کښې ددروگونو مملکتو دمشرانو کنفرانس په یالتا کښې چه په کریمیا کښې واقع دی منعقدشو دلته نه یوازې دجگړې دپرمخ بیولو پرمسائلو باندې مذاکره وشوه بلکه دصلح پرمسئله او داروپا پرمشکلاتو باندې هم بحثونه وشوه په پای کښې په ټولو عمومي مسائلو باندې موافقت راغی اوفیصله شوه چه د ۱۹٤۵ کال داپریل پر ۲۵ کښې ( ۵ ثور ۱۳۲٤) په سان فرانسسکو کښې یو بین المللي مجلس دټولو متحده دولتو په شمولیت جوړ شي او دنوی بین الاقوامي مجلس دتشکیل په باره کښې غور وکړي هر کله چه دمسکو د کنفرانس نه وروسته روسانو دپولیند دلندن حکومت سره خپل تعلقات بیخي پرې کړه او د لوبلین ملي پولیند کمیټه ئې په رسمیت سره پیژندلې وه - او د بلې خوا ، دانگلستان او دامریکا حکومتو ددې کمیټې په پیژندلو کښې موافقه نه وه کړې نوفیصله شوه چه دلوبلین په کمیټه کښې (چه په دغه وخت کښې ئې په وارسا کښې چه آزاده شوې وه ځای نیولی اوځان ئې دپولیند موقتي حکومت اعلان کړی و) دپولیند داخل اودخارج دیموکراتانو څوتنه غټ مشران هم ځای ونیسي نوپه دغه صورت به انگلیس اوامریکا هم دغه حکومت په رسمیت وپیژني . (منگر بیا هم تر اوسه پورې دغه معامله فیصلې ته نه ده رسیدلې اوروسانو هغسې حکومت په پولیند کښې نه دی جوړ کړی اوددې جهته پولیند یانوونه کولای شو چه په سان فرانسسکو کښې شامل شي ) .

**ددمبارټن اوکس کنفرانس**: دغه کنفرانس چه د کال په اوائلو کښې په امریکا کښې دڅلورو غټو دولتو (انگلیس - روس - امریکا اوچین ) دنماینده گانو په ذریعه جوړ شودنوی جامعه ملل او د

امنيت دساتلودنوی سيستم پهباره کښې ئې بحث وکړاوځينې مسودې مېنځ ته راغلی ـ چهدهنوروح پهقراربايد وروسته ترديې لوی دولتونه دامنيت دساتلومسئولوی اوپهدې لحاظ بايد دوی سلهمسلح پاتهشی اودنوروډولتو دقواؤ څخه همدجامعه مللدفيصلی پهقرارد ضرورت پهوخت کښې استفاده وشی اوپهعين زمان کښې ټولهدنيا دغټودولتو دموقعيت په لحاظ په منا طقوتقسيم او د هرې منطقې دامنيت دساتلووظيفه يوهلوی دولت ته وسپارل شی ·

دغه مسودې چه دمسکواوديالتا په کنفرانسو کښې هم دبحث لاندی راغلی وې فيصله شوه چهدسانفرانسسکو په کنفرانس کښې (چهاوس جاری دی)اوپههغه کښې ددنيانوردولتونه هم شامليږی بايد دفيصلی لاندی ونيول شی ·

هوائی کنفرانس : ـ دغه کنفرانس چهدمنی پهموسم کښې پهامريکا کښې منعقد شو اوپه هغه کښې بې له روسی څخه تقريباًدنياټولوصلح غوښتونکږ دولتو چهافغانستان هم پکښې شامل دی برخه اخستیوه ددنيادملکی هوابازی دآينده پهباره کښې بحثوشو کهڅههم پهنظر ياتو . کښې د ځينو غټودولتو ترمينځ څهاختلاف نظر پيداشو اودبلیخوا روسيه په کنفرانس کښې شامله شوی نهوه بياهم دامسئله دسان فرانسسکو کنفرانس ته راجع شوه چهقطعی فيصله پکښې وکړی ·

دبريټن ودز کنفرانس : دا کنفرانس چهپه دوی کښې پهامريکا منعقدشو پههغه کښې ٤٤ مملکتو برخه واخستل اوديو بين المللی بانك اوديوبين المللی ذخيره په جوړيدو باندی موافقت وکړل چهدهغه پهذريعه ددنيا دمملکتو داقتصادی اوعمرانی پلانو دپرمخ تك په باره کښې استفادهوشی

داؤدمتحدينو مهم کنفرانسونه پهدې کال کښې ځينې نور کنفرانسونه دمالی ، اقتصادی ، صحیدجګړی دمسئولينودمجازاتاونورو مسايلو پهباره کښې هممنعقد شوی دی ليکن عمومی جنبه ئې نه دراوده او کمیقطعی نتيجیته هم نهدی رسيدلی ·

دمحور لهخوا :

پهدې کال کښې دمحور ددولتو اوضاع ښه نهؤ او هرڅه چه دوی کړی دی انفرادیاو اضطراری شکل ئې دراود بياهم دالمان اوايطاليا او همدارنګه دجاپان اودشرق اقصی دجاپانی متصرفاتو پهکامپو کښې جلاجلا ځينی سياسی فعاليتونو صورت موندلی دی چهمهمئې دادی :

دالمان په سياسی کامپ کښې :

پهدې کال کښې دالمان او ايطاليا دفاشيت جمهوريت روابط ټينګ ؤ ـ موسولينی اوهتلر څوواره ودبله سرهپهالمان کښې وکتل اوموسولينی ډېر کوښښ وکړ چهدايطاليا پهشمال کښې دايطالويانو پهذريعه عسکری اوصنعتیقوه جوړه کړی اوالمانيانو سرهمرسته وکړی ـ منګرد کال پهپای کښې وضعيتدحربیواقعاتو په اثرخراوتبرهشو او دايطاليامليونو په موسولينی باندی شورشوکړ او هغهئې لهخپلو ملګروسره ټولووژل · دبلی خوادالمان داروپای شرقی متحدينو لکه دفنليند رومانيې ، بلغاريې ، مجارستانمشرانو پهدې کال کښې دالمان دمشرانو سره څوځله کنفرانسونه وکړه منګربياهمهغهوخت چهدروسقواشرقی اروپاتهداخلشوه دالمانهڅخه يلهپسی جلاشول ـ رومانيی اوبلغاريې بیلهدې چهالمانيانوتهخبرور کړی درو سانوسره ئې دالمان پرضدموافقت وکړ حالانکه

فنلینډ او مجارستان په اخري مرحله کښې مجبور شول چه ددوی پر ضد اقدام وکړی یا هم فنلینډ المانیانو ته موقع ور کړه چه خپل عسکر د فنلینډ نه څخه وباسی ـ مګر دا ته المانیانو ځان ټینګ کړ او جګړه شروع شوه او المانیانو د فنلینډیانو سره څه اخ وډب وکړ او پس له هغه څخه روسی قوځونه په فنلینډ کښې داخل او المانیان ئې وویستل او ځان ئې د ناروی و سرحد ته هم ورساوه ·

همدا رنګه مجارستان چه تر ټولو دولتو ئې زیات د المان سره دوستی او اتحاد درلود هغه وخت چه د روس عسکر د مجارستان و سرحد ته داخل شو د روسیانو سره ئې د صلح دپاره تیاری وکړ لیکن المانیان خبر شول نائب السلطنه او نور مشران ئې بند یان کړل او نوی حکومت ئې په مجارستان کښې جوړ کړ چه د روسانو پر ضد جګړی ته دوام ور کړی .

هغه مملکتو نه چه تر یا په پوری د المان تر اقتدار لاندی پاتی شول : آستریا ، چکوسلواکیا او ناروی او دنمارك ؤ د غو مملکتو ( بی له آستریا څخه ) د المان په مقابل کښې څو ځله قیام وکړ مګر کامیاب نه شو ل ·

په شرق اقصی کښې جاپانیان په دې کال کښې دفاعی رضعیت ته مجبور شوی او ددې دپاره دوی هم د خپلو متفقینو سره ځینی کنفرانسونه جوړ کړی او سلا و مشورت ئې سره کړی دی · مخصوصاً هغه کنفرانس چه د شرق اقصی د دولتو په مینځ کښې د کال په پای کښې په جاپان کښې منعقد شو ډیر اهمیت لری ځکه چه په دې کنفر اس کښې دفاعی تر تیبات تر بحث لاندی نیول شوی ؤ ·

اوس باید د دنیا د غټو مملکتو داخلی اوضاع و ته هم یو نظر واچوو :

<u>غربی متحدین :</u> په دې کال کښې انګلیس او امریکا تر ټولو او قاتو کښې یو د بله سره نژدی ؤ او په ټولو مسائلو کښې ئې تقریباً یوه رایه در لوده په اتازونی کښې د روزولت څلورمه پلا انتخاب او وروسته تر هغه د هغه مرګ خور امهمه واقعه بلل کېږی یا هم دا واقعات بی له دی چه د متحدینو د روابطو د ټینګار دپاره تا ثیر وکړی کمه مخالفه نتیجه نه ده ور کړی · ترو من چه د روز ولت نائب و او اوس د باقی پاتی دوری دپاره د اساسی قانون سره سم رئیس جمهور شوی دی ، د روز ولت د حزب او د هغه د افکارو شخصی طرفداردی او رسماً ئې اعلان کړی دی چه د جګړی د پرمخ بیولو دپاره عزم لری او پس له دې څخه هم امریکا باید خپله برخه د صلح د تأمین او حفاظت دپاره وا خلی همدا رنګه ایډور دستی تی نی یس چه د کوردیل هل په عوض د روزولت د خوا وزیر خارجه ټاکل شوی دی (ځکه چه هل زوړ او ناجوړه و) هغه د هل سیاست ته دوام ور کوی . د اتازونی مادی او معنوی قوه په دې کال کښې خوراز یاته شوی ده او لا پسی زیاتیږی د بلی خوا په انګلستان کښې په دې کال کښې کمداسی نوی تغیر چه د ویلو وړ وی نه دی پیښ شوی ـ د انګلستان پارلمان خپلی دوری ته د اروپا د جګړی تر ختمه پوری امتداد ور کړ او همدا رنګه ټولو حزبو د چرچل د کابینی سره خپلی همکاری ته دوام ور کړی دی · د انګلستان وزیر په شر ق اقصی کښې ( لارډموین ) په قاهره کښې د یو یهودی ځلمی د لاسه ووژل شو ـ قاتل وویل چه هغه دا اقدام ددې دپاره کړی دې چه فکر کوی

انګلستان دعربوسره موافقه کړی اوغواړی چه دیهودیانو دحمایته لاس واخلی هغه یهودی اعدام شو .
انګلستان هم په دې کال کښې په ټولو محاذاتو کښې په جګړه کښې خورا ډېره برخه اخستی ده او ځېلو انتهائی
تجهیزاتو ته رسیدلی دی . دالمان دجنګ دختمیدو په موقع کښې بیا انګلستان ځېل عزم تائید کړ
چه ترڅو چه جاپان هم مغلوب نه شی دهغه په مقابل کښې به هم جګړه دځېلو ټولو قواؤ په ذریعه پسی
اوږده کړی د محوری مملکتو دمستعمراتو په باره کښې تراوسه پوری کمه فیصله منځ ته نه ده راغلې لیکن
داسې معلومیږی چه دغه مسئله به دصلحو تر کنفراس پوری معطله وی .

<u>روسیه</u> : دروسیې په داخل کښې په دې کال کوم محسوس تغیر نه دی پېښ شوی منګر دهغه
ټوله توجه او ګردمنابع دجګړی دپرمخ بیولو په لاره کښې معطوف اومتمرکزۋ چه په پای کښې
قطعی نتیجې ته هم ورسیدل .

دسیاست په جبهه کښې هم دروسیانو ډېری کامیابی لاس ته راغلی دی چه په هغه کښې دفنلیند
رومانیې بلغاریې اومجارستان مصالحې اودروسیې دټولو شرطو منلی هم شامل دی د کال په پای کښې
روسیې اعلان وکړ چه دجاپان سره دهغه عدم تجاوز دقرار داد د تجدید دپاره چه په ۱۹٤۰ کښې
دپنځو کالو دپاره منعقد شوی ۋ حاضر نه دی ځکه چه جاپان دروسیې دمتحد ینو سره په جنګ اخته
دی یاهم تر اوسه پوری دانده ښکاره شوی چه آیا اتحادشوروی دجاپان په خلاف په جګړه کښې شامل
کیږی که یه ؟ همدارنګه روسانو ځېل هغه قرارداد چه تر کانو سره ئې د دوستۍ دپاره شل کاله
دمخه عقد کړی ۋ تجدید نه کړ اوونې ویل چه اوس وضعیت ډېر تغیر کړی دی او باید نوی قرارداد
په نوی اساس باندی جوړ شی .

لیکن د روسیې روابط دچین سره چه پخوا ښه نه ۋ اوس لږ څه ښه شوی دی
په دی کال کښې روسانو د اروپا له غربی اومرکزی مملکتو سره ډېر قرار دادونه
کړی دې چه یو دفرانس سره اوبل ئې دچکوسلواکی سره داتحاد قرارداد ونه دی اوهمدا رنګه
دبلژیك اوځینو نورو مملکتو سره ئې هم ددوستۍ قرارداد امضاء کړی دی ـ دنوی کال په سر کښې
داستریا اوپولیند دحکومتو تشکیل چه دروسیې ترنظر لاندی تشکیل شویدی د غربی متحدینو اود
روسیې ترمینځ ئې دمخالفت نظر مواد پیدا کړی دی چه تراوسه پوری لا رفع شوی نه دی اوترغور
لاندی دی . دافغانستان اودروسیې روابط هم په دی کال کښې خورا دوستانه ۋ اوسربیره له هغه یو
زراعتی روسی هیئت ددواړو مملکتو دزراعتی قرارداده سره سم افغانستان ته راغلی اودافغانستان
دمتخصصینو سره ئې دزراعتی مرضو اوحشرودمحو کولو په باره کښې مذا کره او تصویبونه وکړ .

<u>المان</u> : دا کال دالمان دپاره خورا سخت کال و ، اګر که د کال تر آخره پوری نازی
رژیم په المان کښې قائم ۋ یاهم د کال د سره دهغه رژیم اوزعماؤ په مقابل کښې دمخالفت روح
پیدا شوی ۋ لکه چه دجولائی (سرطان) په میاشت کښې پر هټلر باندی یو بم واچول شو لیکن هټلر نجات
وموند . وروسته تر هغه هملر د المان دخفیه پولیسو رئیس ډېر اقتدار وموند . همدا رنګه دهټلر

اودلویو منصبدارانو په مینځ کښې اختلافات ډېرشوه کهٔ څه هم هټلر پرله پسې دغه منصبداران معزول اوتبدیل کړه بیاهم دجګړې مخ دالمان په طرفداری ونه ګرزید اود کال په پای کښې د المان ټول استحکامات په غرب او په شرق کښې یو په بل پسې مات شول ـ اوجګړه دبرلین شاو خواته ورسیده . دنوی کال په سر کښې دهټلر وضعیت بحرانی شو ـ افواهات جاری شول چه هټلر ناجوړه د ی اود مینځه ورك دی اوهملر ټول اقتدار په لاس کښې لر ی . ګویرنګ استعفی ور کړه اوهغه وخت چه روسیان په برلین کښې داخل شوه هملر غربی متحد ینوته د تسلیم بلا شرط پیش نهاد و کړ لیکن دوی ونه منا نه دوی وویل ترڅو چه روسا نوته هم بلا شرط تسلیم پیش نشی مونږ ئې نه منو وروسته تر دې دهملر نوم هم د مینځه ورك شو اود ثور په (۱۱) دالمان دراډیو څخه دااعلان وشو چه هټلر داتحاد شوروی په جنګ کښې دالمان د صدارت په ماڼۍ په برلین کښې مړ شو اوادمیرال دونتس دالمان دبحری قواؤ رئیس ئې دخپل جانشین په حیث مقرر کړ همدغه وخت دونتس دااعلان و کړ چه جګړه به دروسانو په مقابل کښې دوام و کړی او که چیری غربی متحدین ددې مقصد مانع شی یادروسانو سره مرسته و کړی دهغوی په ضد به هم جګړې ته دوام ور کو .

دغهٔ چه ددې بعدد متحدینو په مقابل کښې جګړه بنده شوه اود المان قواؤ پرله پسې ځانونه انګریزانو اوامریکائیانو ته وسپارل ـ منګر دعمومی تسلیم مذاکرات دادمیرال دونتس اودمتحدینو په مینځ کښې جاری و ، چه دهغه په پای کښې دثور په ۱۶ کښې دادمیرا [illegible] ونتس دخواد هغه دنوی وزیر خارجه په ذریعه ئو لوالمانیانو ته دراډیو په واسطه اعلان وشو چه جرمنی دی خپل ټول قواانګریزانو روسانو اوامریکا نیانوته بلاشرطه تسلیم کړی اوباید دوی دجګړې څخه لاس واخلی ـ داقرارداد د(ریمس) په ښار کښې چه په فرانسه کښې واقع اود آیزن هاورمر کزوامضاء اوسهار په برلین کښې دمارشال کیتل (المانی) مارشال ژو کوف (روسی) مارشال تیډر (متحدین) اوجنرال تاسینی (فرانسوی) تر منځ تبادله شواوجګړه دثور په ۱۸ شپه په ۱۲ بجواویوه دقیقه رسماً بنده شوه اوپه عین زمان کښې دالمان حکومت هم خاتمه ومونده اودالمان نمایندګی به خارج کښې بندی شوی دهټلر د مرګ کیفیت اودهملر اوربین تروپ درك لا تر اوسه پوری معلوم ندی ګز ټلز اودهغه دفامیل لاشونه په برلین کښې پیدا شوه چه زهر ئې خوړلی و ـ ګویرنګ داته نورومارشالانو سره ځان متحد ینوته تسلیم کړ .

جاپان : په دې کال کښې په جاپان کښې هم ډېره ناقراری موجوده وه ـ څو کابینې مینځ ته راغلی اوپس له څو مودې ئې سقوط و کړ ـ لمړی جنرال توجو چه دا جنګ دده په وخت کښې شروع شوی و ـ چه متحدین په ماریانا او فلپائن کښې کښته شوهٔ اودامریکائی هوائی قلاګانو دجاپان پرښارو باندی بمباری شروع شوه استعفی و کړه اوجنرال (کوئیسو) دهغه ځای ونیو ـ منګر په هغه وخت کښې چه روسی خپل دبیطرفی قرارداد د جاپانه سره قطع کړنودا صدراعظم هم مستعفی شو اواوس جنرال (سوزو کی) کابینه تشکیل کړی ده اوځنی خلق وائی چه دادصلحی کابینه ده منګر بیا هم کمه علامه چه دا افواه تصدیق کاندی تراوسه پوره لیدل شوی نه ده ـ بلکه دالمان د

سقوط پهوخت کښې‌هم جاپانیانو خپله‌اراده د جګړې دپرمخ بیولو پهباره کښې ښکاره کړه پههر صورت دا کال دجاپان لپاره‌هم خورامشکل کال‌دی‌خصوصاً چه‌اوس دمتحدینوپه ملیونو عسا کرو پهزروجهازونه اوالوتکې دجاپان پهخلاف په کارا چول کیږي.

فرانسه: فرانسه‌پهدې کال کښې ګویادوباره‌ژوندی شواوپس‌له هغه څخه‌چه دا ګست (۱ سه) پهمیاشت کښې‌المانیان دفرانسه دخاورې داکثرونقاطو څخه وایستل شول‌نو فرانسه دغوممالکتو په قطار کښې خپل‌ځای بیر ته‌ونیو او ټولو متحدینوهم دفرانسې په دغه موقعیت اعتراف وکړ جنرال دوګول دفرانسې دملي کمیټې رئیس دفرانسې‌دموقتې حکومت مشر پهحیث وپیژ ندل شو اودروسې او بلژیك سره‌ئې داتحاد قرارداد ونه امضاء کړه اواوس د فرانسې دپار لمان د نو وانتخاباتو دپاره ترتیبات نیول کیږي د فرانسې عسکردالمان په خلاف دغربې متحدینو سره اوږه‌په اوږه جګړه ته داخل‌شو اوفتوحات ئې هم وکړه‌او اوس دالمان په اشغال کښې هم فرانسې‌ته برخه ور کول کیږي.

بیاهم‌په ځینو خصوصي اوعمومي مسائلو کښې‌دفرانسې‌اوانګلستان‌اوامریکاحتی‌روسیې‌په مینځ کښې اختلاف نظر شته خصوصاً دسوریې‌اولبنان په‌آزادی کښې چه‌دفرانسې ددې کارپه‌فوري اجرا کیدورضائیت‌نه‌درلود حالانکه‌متحدینو دامسئله دمخه‌اعلان کړې او اوس ئې دسوریې‌او لبنان نمایندګان هم په سان فرانسسکو کښې دعوت کړي دي. اوبل دآینده صلح دتأمین دطرزاو سیستم په‌باره کښې فرانسه دمناطقو دنفوذ اهاصو لوسره موافقت نه لري همدارنګه فرانسه دنورو غټوممالکتو څخه ناراض‌دی چه‌ولې‌ئې ددمبارټن‌اوکس اوديالتا په کنفرانسو کښې فرانسې ته‌دشمولیت موقع‌نه‌وه ور کړې. ددې کبله فرانسه اوس دسان فرانسسکو په کنفرانس کښې ددې په عوض چه ددعوت کوونکو دولتو پهحیث شامل‌شي، یوازې دیومعمولي عضو پهحیث داخل شوی‌دی.

دفرانسې په داخل کښې هم اوس دهغو کسانو چه دالمانیانو سره ئې هم کاری کړی ده محاکمه جاری‌ده اودچپه لاس احزاب ډیر اقتدارلري. مارشال پیتن همچه دفرانسې دسقوط په وخت کښې‌چه دالمانیانو په‌ذریعه المان ته بیولی شوی‌ؤ پس له هغه څخه چه په المان کښې بحران پیښ‌شودسویس‌پهلاره فرانسې‌ته‌راغی اوخپل‌ځان‌ئې‌محاکمې‌ته سپارلی دی نور فرانسوي سیاسیون هم دالمان‌دبندی خانوڅخه خلاص او فرانسې‌ته راغله اوس‌فرانسه دجاپان پرضدهم عسکراستوي ځکه‌دجاپانیانوټول‌هندچینې ترخپل کنترول‌لاندې نیولی‌دی‌دثوردمیاشت‌په‌آخر کښې‌دفرانسې اودسوریه اولبنان‌ترمینځ دنوی‌قرارداد‌په باره کښې اختلاف اوجګړه‌پیداشوانګریزان‌دخپلې‌قواؤپه مرسته مداخله‌وکړاوجګړې‌ته‌خاتمه‌ورکړمګرفرانسه‌ناراض‌شو. اوس‌به‌معامله‌یوبین‌المللي‌مجلس‌ته‌وړاندې‌شي.

بلژیك: هغه وخت چه دبلژیك دمتحدینوله خوا آزاد شو، هر کله چه دبلژیك پاچا دالمانیانو پهلاس کښې بندی‌ؤشهزاده (شارل) دهغه‌ورور دنائب‌السلطنه پهحیث وټاکل‌شو اوهغه حکومت‌چه‌پهلندن کښې‌و بلژیك ته‌ئې مراجعت‌وکړاودبلژیك دملي‌مقاومت کوونکو خلقوپه مشوره او

همکاری نوی کابینه جوړه شوه چه په هغه کښې کمونست او روسیا لستمهمه برخه لری ـ گمان کیږی چه په دبلژیك پاچا چه اوس د جرمنیانو دلاسه څخه خلاص شوی اودنا جوړی په لحاظ دسلطنت دچارو دا شغال څخه عذرغو ښتی او خپل وروړته ئې ویلی دی چه خپل نیابت ته دوام ورکړی دوباره ئې په پادشاهی و تاکل شی .

بلژیك په دې کال کښې دفرانسې، انگلستان او روسیې سره ددوستې او حفظ امنیت قرار دادونه کړی دی.

د یونا ن خانه جنگي : پس له هغه څخه چه یونان دانگریزانو په مرسته دالمانیانو څخه آزاد شو او هغه پخوانی حکومت چه دالمان د اشغال څخه وروسته په انگلستان (او بیا په قاهره کښې تشکیل شوی و) یونان ته مراجعت وکړد یونان دملی قواؤ مشرانو داونه منله اودژمی په سر کښې جګړه شروع شوه انگریزی عسکر ددې دپاره چه نظم قائم شی مداخله وکړه منګر بیائی هم ونشو کولای چه د هغه پخوانی حکومت حمایت وکړی ـ پس له ډیراخ وډب څخه دانگریزد حکومت دوساطت په اثر دا فیصله شوه چه یونائب السلطنه دیونان دپادشاه له خوا وټا کلی شی او هغه یو نوی حکومت چه بیطرف وی جوړ کړی او پس له دې چه امنیت برقرار شو عمومی انتخابات وشی او دپاچاهی او جمهوری اودافرادو اقتدار په باره کښې فیصله وکړی هغه وچه دژمی په پای کښې جګړه پای ته ورسیده او چرچل او ایدن هم آتن ته ولاړل او د پخلا کیدو په وخت کښې حاضرو .

نور آزاد شوی ملمکتونه: نور آزاد شوی مملکتونه لکه ایطالیا، هالیند، ناروی، دنمارك، چکوسلواکیا البانیا، رومانیه، بلغاریه او لگزامبورگ، استونیا او لتوانیا چه د جګړی په ضمن کښې تر مستقل عنوان لاندی ددوی حالات بیان شوی نه دی په دوه برخو جلا کیږی :

لمړی هغه مملکتونه چه دروسی تر اشغال لاندی دی، دوهم هغه مملکتونه چه د متحدینو په ذریعه آزاد شوی دی په لمړنیو ممالکو کښې بی د بالتیك ددروریاستونه چه د جګړی په سر کښې په شوروی جمهوریتو کښې شامل شوی و ، او اوس هم په هغه اساس باندی دشوروی جمهوریتو په حساب شمارل کیږی .

په باقی مملکتو کښې لکه رومانیه، بلغاریه او همدارنګه په پولینډ ، اسټریا او فنلینډ کښې داسی ملی حکومتونه چه دروسانو سره موافقت نظر او په عقیده کښې نږدی والی ولری تشکیل شو ـ یوازی په چکوسلواکی کښې هغه پخوانی حکومت چه دالمان داشغال څخه وروسته دمملکت څخه خارج شوی و ـ ددا کتر بینش تر ریاست لاندی بیرته خپل مملکت ته راغی په دوهم ډول مملکتو ته لکه هالیند، ناروی ، لوگزمبورگ هم پخوانیو حکومتو نومراجعت وکړ منګر دداخلی مقاومت داحزابو نمایندگان هم په کښې شامل شو ، په دنمارك کښې هغه حکومت چه دالمان داشغال په وخت کښې ئې دالمانیانو تر اثر لاندی داخلی اداره په لاس درلود په اقتدار باندی پاته شوه منګر پارلمان دوباره افتتاح او نوی کابینه د خلکو په خوښه سره تشکیل شوه په ایطالیا کښې هغه وخت چه روم فتح شو او ویکتور امانویل د پاچاهی څخه استعفاو کړه او خپل ولیعهد ئې دسلطنت دوکیل په حیث وټاکه بادلیو هم استعفی ورکړ او بونومی پخوانی صدر اعظم چه دموسولینی د حکومت دمخه صدر اعظم و کابینه تشکیل کړه او په هغه کښې اکثر سیاسی احزابو هم برخه واخیسته ۰ دالبانیا آینده لا تراوسه پوری معلومه نه ده ۰

دا عرابو د اتحاد کنفرانس : دعربو د اتحاد د تحریك په جګړې د سره څخه دعراق او دمصر دحکومتو تر حمایت لاندې شروع شوی ؤ په دې کال کښې ئې دیوه قرار داد دلا س ایك په ذریعه چه په هغه کښې بې له یمن او فلسطین څخه د نورو ټولو عربي مملکتو نما ینده ګان شامل ؤ حقیقي شکل پیدا کړ په دې قرار داد کښې ویل شوي دي چه ټول عربي مملکتونه بې له دې چه ددوی په استقلال او طرز اداره کښې څه فرق اوقید پیداشي په اقتصادي عرفاني او تهذیبي زمینو کښې یو له بله همکاري کوي چرچل او روزولت هم پس له هغه څخه چه د کریمیا د کنفرانس څخه فارغ شول په قاهره کښې ئې دعربو دزعما ؤ سره ملاقاتونه وکړه او ددې قرار داد دلاس لیك په نسبت ئې خپله رضامندي ښکاره کړه امریکا دعربیهٔ سعود یه څخه دهغه مملکت دنفتي منابعو اجاره حاصله کړې ده دسوریې او لبنان استقلال په دې کال کښې دانګریزانو اوروسانو او امریکائیانو دخوا او دنورو مملکتو له خوا چه په هغو کښې زمونږ ګران وطن هم شامل دی وپېژندل شو مصر، سعودي عربستان، سوریه او لبنان د کال په آخر کښې د المان او د جاپان پر ضد د جګړې اعلان وکړ او دا اقدام ددې د پاره ؤ چه د سان فرانسسکو په کنفرانس حق د شمولیت پیدا کړي دمصر صدر اعظم احمد ماهر پاشا په ژمي کښې دیو مصري ځلمي په ذریعه ووژل شو. ویلې شوي دي چه دا اقدام دا حتجاج په صورت شوی و.

دامریکائی مملکتو کنفرانس:- په دې کال کښې ټول امریکائي مملکتونه دمتحدینو په طرفداري دمحور پر ضد جګړې ته داخل شول اخري مملکت چه دا کار ئې وکړ ارجنتائن او برازیل وچه تر دې روستنیو ورځو ئې هم خپلې بېطرفي او په عین حال کښې ئې دمحور سره همدردي ته دوام ور کړی ؤ منګر د کال په پای کښې دغو مملکتو هم دمتحدینو د ټینګ وضعیت په اثر او همدارنګه د المان دماتي په پېش بیني سره دمتحدینو پخوا او دریدل او د المان او جاپان سره ئې اعلان جنګ وکړ او هغه وچه ارجنتائن هم لکه برازیل د سان فرانسسکو په کنفرانس کښې ئې هم حق د شمولیت پیدا کړ. لیکن هغه امریکائي مملکت چه عملاً ئې دارو پاپه جګړه کښې برخه اخیستې (پس له اتازوني څخه) برازیل دی چه قوائي په ایطالیا او نورو ځایو کښې په جنګ کښې شامل ؤ.

دامریکا ئیایانو دری کلنی جرګه چه تردې وخته پورې دپان امریکن یعنې د امریکا دا تحاد جرګه بلل کېده. په دې کال کښې په مکسیکو کښې منعقده شوه لیکن دا پلا ئې نوم څه تغیر کړی او (دبین الامریکائي) « انترامریکن » په نامه سره ئې انعقادومونډ. ځکه چه اوس امریکائي مملکتونه غواړي چه انزوا پر پښږدي او د دنیا د ټولو مملکتو او ملتو سره په ټولو شئونو کښې ګډون وکړی نو په دې لحاظ د کنفرانس په اسا سنامه کښې هم فرق پیداشو او په هغه کښې دامریکا وزیر خارجه دامسئله څرګنده کړه چه ددې وروسته امریکائي مملکتونه نه شي چه ځان ددنیا دمسائلو څخه لرې کړي بلکه باید د آینده صلح د تامین د پاره او ددنیا په ترقي کښې خپله پوره برخه واخلي.

ایران: په دې کال کښې په ایران کښې امنیت قائم ؤ او د آذوقې په تهیه کولو کښې هم ډېر کوششونه شوي ؤ منګر بیاهم د ایران په اداري او اجتماعي اوضاعو کښې بیقراري موجوده وه څو ځله کابینې تبدیلې شوې او د ایران حکومت هغه امریکائي مستشاران چه د اداري او اقتصادي اوضاعو د اصلاح د پاره ئې راغوښتي ؤ

ورته مرخص کړه ـ دایران پخوانی پادشاه رضاشاه پهلوی په جنوبي افریقا کښې مړشو دایران د شمال منطقي دنفتو دامتیاز په نسبت هم شوروی حکومت غوښتنه وکړه لیکن ایرانی حکومت وویل چه ترڅو جګړه ختم نشي مونږ دخپل مملکت منابع وخارجي مملکتو ته په امتیاز نه ورکوو لکه چه معلومیږي امریکا ی اوانګلیسي دتیلو ایستلو نمایندګان په دی کال کښې ایران ته راغلی اودایران دتیلو په باره کښې ئې مطالعات کړی دي .

دامسئله لا تراوسه پورې فیصله ته نه ده رسیدلې بیاهم دایران روابط دمتحدینو اودروسیې سره دوستانه اودقرارداد سره سم جریان لری اګر که دمدیترانی دآزادۍ نه وروسته دروسیې درس رسانۍ لاردهغی خوانه هم جاری شوی ده سره له دې هم لا تراوسه پوری دایران دلاری څخه هم خورا ډیر سامان روسیې ته استول کیږی ایران کوښښ لری چه اوس چه جګړه په اروپا کښې پای ته رسیدلې ده دمتحدینو قوادې دایرانه څخه دطهران داعلامیې په مطابق وایستل شي لکه چه دایران نماینده په سان فرانسسکو کښې هم دغې مسئلې ته اشاره کړی ده اوامید کیږی چه دا کار ژر ترژره عملي شکل پیدا کړی اودایران داستقلال اوتمامیت احترام وشي .

ترکیه : په دی کال کښې تورکیه دمتحدینو سره په جګړه کښې شامله شوه مګر دې واقعې د کال په پای کښې اوپه داسی وخت کښې صورت ونیو چه داروپا جګړه خپل پای ته رسیدلې وه او ترکیې عملاً په جګړه کښې کمه برخه واخسته ده دمنی تر موسمه پوری ترکیه پخپله بیطرفۍ باندی قایمه وه او که څه هم انګریزانو ورڅخه ګیله وکړه چه تاسې حربي امداداخستې لیکن په جګړه کښې داخل نشوی ، مګر ترکانو وویل چه زمونږ بیطرفی تاسو دپاره ډیره فایده کړی ده ـ بیاهم د کال په اخری فیصلې کښې دفعتاً داروپا دحربي انکشافاتو په اثر دترکیې په سیاست کښې تغیر پیداشو اودترکیې خارجه وزیر چه دبیطرفی طرفدارو (منمن جی اوغلو ) استعفی وکړه او حسن سقاوزیر خارجه مقرر شواولمړی ئې دالمان اوجاپان سره خپلې سیاسی او اقتصادی روابط پرې کړل اودمارچ په اول کښې اواسط د حوت دانګریزاود امریکا په بلنه سره چه دسان فرانسسکو د کنفرانس دداخلیدو شرط دغه اعلان جنګ ؤ ـ دالمان او دجاپان سره ئې د جګړی اعلان وکړ ـ دترکیې په داخل کښې هم د کال په وسط کښې یو جماعت کشف شوی و چه دترکیې داساسی سیاست سره ئې مخالفت نظر درلود اود( پان تورانیزم ) افکار وحمایت ئې کاوه مګر دترکیې حکومت هغو کسانو ته جزا ورکړه اوهغه جماعت منحل شو ـ دروسیې اوترکیې روابط و هم په دې کال کښې په عادی شکل سره دوام درلود مګر د کال په پای کښې دروسیې حکومت اعلان وکړ چه هغه ددوستی قرارداد چه شل کاله دمخه منعقد شوی و ـ دتجدید آرزو ئې نه لرو ځکه چه اوضاع په دی عرصه کښې ډیر تغیر کړی دی ـ دترکیې حکومت ددې په مقابل کښې خپله آمادګی ښکاره کړه چه دنوی قرارداد د انعقاد په باره کښې نوی مذاکرات شروع شي لیکن تراوسه پوری دامذاکرات شروع شوی نه دی ویل کیږی چه ددردانل د عبور ومرور په قیودو روسیه رضائیت نه لری اوغواړی چه د ر دانل دهغو مملکتو دجهازو دپاره چه په بحر سیاه کښې حق د کښتی رانی لری کاملا آزا دوی .

لیکن دترکیې نماینده په‌سان فرانسسکو کښې وویل چه‌ترکیه ددارداناډقرارداد دتغیر ورکولو په‌باره کښې آمادګی نه‌لري ·

هندوستان : په‌دې کال کښې په‌هندوستان کښې کمه‌مهمه سیاسي واقعه نه ده پېښه شوې · دهند تشکیلاتي تعویق تراوسه پورې‌لادوام‌لري - بیاهم‌ددې په‌اثرچه ګاندهي دحبس‌څخه بې‌له کمه شرط خلاص شوی او کانګریسانو په‌ځینو ولایتو کښې رسمي ماموریتونه قبول کړي دي، (لکه صوبهٔ‌سرحد) ښکارېږي چه‌امکان لري‌بیاهم کمزوی تحریك مینځ ته راشي- د(لارد ویول) اوسنی سفرپه لندن کښې دا احتمال زیاتوي اوځینې سیاسي‌خلقو په هندوستان کښې (چه داحزابو سره‌ربط نه‌لري) ځینې پیش نهادونه انګریزانوته وړاندې کړي دي چه‌باید یوعارضي ملي‌تشکیل دجګړې په‌دوران کښې‌دټولو هندي احزابو په‌اشتراك قائم شي- او دشورا په‌مجلس کښې داحزابو دنمایند ګي‌ تناسب دنفوسو په‌لحاظ وي - دمسلم لیك حزب په‌شدت ددغه قسم عارضي تشکیلاتو مخالفت کوي اودپاکستان په‌مطالبه کښې ټینګ‌وي. که‌څه‌هم د دې حزب مشر محمد علي جناح د کال په‌سر کښې د کانګرس دقائد (ګاندهي) سره ملاقات اومفصل مذاکرات وکړه چه ددې دوو احزابو په مینځ کښې یوموا فقت پیدا شي- لیکن کامیاب نه شول -ځینې خلق ګمان کوي چه‌دهند مسئله ژرترژره‌دفیصلي دپاره‌ترنظر لاندې‌نیول کېږي او هندوستان‌ته ددومینیو ن درجه ور کول کېږي - اوس دهندنمایند ګانو هم‌دسان‌فرانسسکو په کنفرانس کښې ګډون کړی او‌هلته ئې داغوښتنه کړې‌ده چه‌باید هند ته دځلورو‌غټو مملکتو (امریکا - انګلستان چین ) څخه وروسته‌مستقل موقعیت ورکړه‌شي ځکه‌چه هند دنفوس او اقتصادي منابعو په لحاظ او دهغې برخې په اعتبار چه په‌جګړه کښې ئې‌اخستې‌ده دا صلاحیت پیدا کړی او آینده داهم کولای‌شي چه‌دصلح دساتنې په‌باره کښې پوره برخه واخلي · په دې کال کښې دافغانستان او هند ترمینځ سربېره له دوستانه سیاسي‌او‌اقتصادي‌تعلقاتو نه چه دپخوانه موجودوعرفاني‌اومعلوماتي تعلقات هم‌پرزیات‌شوي‌او دافغانستان عسکري اومطبوعاتي هیئتونه هندته‌بلل‌شوي‌ؤ دهنددحکومت اودهند دملت له خوائې ډېر‌په‌حرارت اوصمیمیت‌سره پذیرائي وشوه‌همدارنګه‌سپورتي‌ډلې‌دمملکتو ترمینځ دلوبې دپاره تګ او راتګ کړی‌دی.

بېطرف مملکتونه : دبېطرفو مملکتو په ضمن کښې‌لمړی‌دخپل ګران‌وطن‌افغانستان واقعات باید‌بیان کړو - زمونږ ګران‌هواد په‌دې کال کښې هم خپله بېطرفي په ښه‌صورت ساتلې اودخپلو همسایګانو اونورو متحابه دولتوسره ئې خپل‌دوستانه وضعیت ته دوام ور کړی دی او سربېره له هغه‌ئې دخپلو‌همسایګانو سره‌په عرفاني اواقتصادي اوفني مسائلو کښې دځینو‌ځینو تبادلي په ذریعه خپل‌همکاري ښکاره کړې‌دی‌او همدارنګه‌په‌ځینو بین‌المللي کنفرانسو کښې‌اودخپلو همسایګانوسره به هم لکه‌دهوائي‌بین المللي کنفرانس‌شرکت کړی‌دی که‌څه‌هم‌دجنګ غیرمستقیم‌تاثیرات‌دافغانستان پراقتصادیاتو‌باندې‌محسوس‌دی‌بیاهم زمونږ داخلي‌وضعیت‌په دې کال کښې داطمینان وړ‌ودداخلي واقعاتو اجمال‌په‌همدې سال‌نامه کښې دجلاعنوان‌لاندې راغلی‌دی‌تکرارته ئې ضرورت‌نشته زمونږ خواخوږی‌پادشاه اوزمونږ حکومت اوملت‌ټول‌دا آرزولري چه‌ژرددغه خونینه غائله ددنیاڅخه‌ورکه شي‌اودهغه پرځای‌دصلح اودمفاهمې اوهمکاري‌اودورور ګلوي- اوبرابري‌نوې دنیامینځ‌ته راشي-

<u>نور بیطرفه مملکتونه</u> : ددنیانور بیطرفه مملکتونه چه عبارت دی له اسپانیه ، پرتگال ، سویډن سویس او آیرځخه - په دی کال کښې ئې خپله بیطرفی ساتلی او هریو ځینو مشکلاتو سره هم مخامخ شوی دی ، جنرال فرانکو داسپانیې مشرپه منی کښې انگلستان ته خصوصی پیش نهاد کړې ؤ چه بایدانگلیس او اسپانیه او ایطالیه اوس چه المان ماتېنږی په اروپا کښې دروس مخه بنده کړی . مګر چرچل دهغه په ځواب کښې ویلی و چه انگلستان په خپله دوستی دروسیې سره ټینګ دی او هیڅ دلیل نه وینې چه د روسیې دپیشرفت مخه بنده کړی . او په عین حال کښې انګلستان دفرانکو درژیم سره چه د نازی او فاشیست ډېر مهم طرفدار او معاون ؤ هیڅ دلچسپی نلری ، دا ځواب په مطبوعاتو کښې هم نشر شو .

په هر حال په دې کال کښې اسپانیې خپل وضعیت دمتحدینو په مقابل کښې تبدیل کړ او ایطالوی جهازونه ئې چه دایطالیا دتسلیم په وخت کښې ئې اسپانیې ته پناه وړی وه متحدینو ته وسپارل او خپل فوځونه ئې دمحاذشرق څخه هم بیرته وغوښتل . اودا اطمینان ئې هم ور کړ چه دجګړې مجرمینو ته به پناه ورنکړی . بیاهم داوضاعو څخه معلومیږی چه دفرانکو رژیم لکه یخوا ټینګ نه دی او د المان ماتې په دغه مملکت کښې تاثیر کوی اوس داسپانیې ډیر جمهوری خواه مشران په فرانسه کښې موجود دی او موقع ته ګوری چه اسپانیې ته مراجعت و کړ ي .

پرتګال په دی کال کښې هم بیطرف ؤ مګر خپل بحری مرکزئې په بحر اطلس کښې لکه پروسنږ کال دامریکائیانو په لاس ور کړی ؤ پرتګال دمتحدینو هغې غوښتنې ته چه دجګړې مجرمینو ته باید پناه ورنکړی صریحاً ځواب نه وور کړ ی .

د آیر حکومت هم په دې کال کښې دامریکائیانو هغه غوښتنه چه باید دمحور سفارتخانې په آیر کښې بندی شي چه د متحدینو عسکری حرکات په اطمینان سره اجراشی و نه مانه همدارنګه دجګړې دمجرمینو دنه پناه ور کولو سوال ته ئې څه ځواب ورنکړ سویډن او سویس چه دواړه دالمان دنفوذلاندې ؤ بیائې هم خپله بیطرفی وساتله مګر دمتحدینو دغوښتنې سره سم ئې اطمینان ور کړ چه دجګړې مجرمینو ته به پناه ورنکړی سویډن داروپادجګړې په اخری ورځو کښې دمتحدینو اودالمانیانو تر مینځ دتسلیم دمذاکراتو وسیله وه داسپانیې . پرتګال او سویس سره شوروی حکومت تر اوسه پوری تعلقات نلری او په وعلت چه روسیه دهوابازی په کنفرانس کښې شامله شو ه د پرتګال او دارجن تائن دنماینده ګانو شمولیت ؤ په هغه کنفرانس کښې چه روسیه ددوی او دسویس سره دهغه په لحاظ کښې چه دجګړې په سر کښې دغه مملکت دروسې سره لمړی فصل روابط قطع کړ ی او نه غواړی چه روس ورسره روابط قائم کړی لیکن داټول بیطرف مملکتو نه دسانفرانسسکو په کنفرانس کښې دعوت نه شول ځکه چه دمخه فیصله شوی ؤ چه په دې کنفرانس کښې یوازی هغه مملکتونه حق دشمول لری چه محور ته ئې دجګړې اعلان ور کړی وی داؤ ددنیا ددې کال عمده واقعات چه په لنډه ډول سره بیان شوه امیدلرو چه دانوی کال دټول جهان دپاره صلح او امنیت راوړ ي اودټولو ملتو په منځ کښې دوستانه روابط دوباره قایم او ددنیا په صحی ترقی کښې بین المللی همکاری پیداشی . (پای)



دیالتا ( کریمیا) کنفرانس : لەبنی خوا ناست خلق : مارشال ستالین ، فرانکلن روزولت ، ونستن چرچل .



دمسکو کنفرانس : لەبنی خوا ، ناست خلق : ایدن ، مولوتوف ، کوردیل هل ، ودچین لوی سفیر یەاتحاد شوروی کنبی دمسکو میثاق امضا کوی .



هیری‌اس ترومن دامریکانوی رئیس جمهور دخپلی ښځی اولور سره .



جیمز برنز داتازوئی نوی
خارجه وزیرچه دروزولت
په وخت کښې دعالی محکمی
رئیس واوپه آخرواوقاتو کښې
د ریاست جمهور داقتصادی
مشاور په حیث تاکل شوی و.



دسان فرانسسکو د کنفرانس‌څخه پخوا، ستی تینیس دامریکا وزیرخارجه
دمولوتوف پذیرائی کوی.



دبرلين فاتح مارشال ژوکوف



دمجارستان او آستريا فاتح مارشال تولبوخين



دپروشيا او دبالتيك دمملکتو فاتح
مارشال راکوسوفسکي ·



دپولينډ اودجنوبي المان فاتح مارشال کونيف ·

